ورځپاڼه
هیواد

مؤسس: عبدالرووف بینوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
پنجشنبه د شعبان المعظم ۲۱ مه ۱۴۴۶ ق کال، د کب ۲ يمه ۱۴۰۳ ل کال، د فبرورۍ ۲۰ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي کنه ۵۴۹ مه، پرله پسې کنه ۶۳۹ مه، اتمه دوره

# د اسلامي امارت رئیس الوزراء د سوریې د نوي دولت مشر ته د مبارکۍ پیغام استولی

د افغانستان د اسلامي امارت رئیس الوزراء ملا محمد حسن اخوند د سوریې د نوي انتقالي حکومت مشر احمد الشرع ته د یوه پیغام په لېږلو سره د ولسمشر په توګه د هغه د ټاکل کېدو مبارکي ویلې ده. د اسلامي امارت مرستیال ویاند ملا حمدالله فطرت لیکلي چې په دې پیغام کې په مبارکۍ د مراتبو وړاندې کولو تر څنګ هغوی ته د نبي حکومتولۍ او د سوریې د ناخوالو د کابو کولو او بریالیتوب دعاګانې هم شوې دي. فطرت زیاته کړې، چې ښاغلي رئیس الوزراء په دې لیک کې د دواړو ورونو هېوادونو تر منځ د ښو او هر اړخیزو اړیکو هیله ښودلې ده.

# د شوراندام د سیمنټو کارخونه ګټې اخیستو ته نږدې شوې



اسلامي امارت د هېواد د اقتصادي ودې، ځان بسیاینې ته د رسېدو او هېوادوالو ته د کاري زمینو د رامنځته کولو په موخه د نورو برخو تر څنګ د زیربناوو جوړولو او بیارغونې ته هم پوره پاملرنه کړې ده. د زیربناوو له جملې یو هم د هېواد په کچه د سیمنټو د تولیدي کارخونو جوړول دي. اسلامي امارت غواړي په کور دننه د سیمنټو د تولید کچه لوړه او په ودانیزو چارو کې ترې ګټه پورته کړي. په همدې موخه یې د بغلان د غورۍ او د پروان د جبل السراج د سیمنټو کارخونو پر فعالېدو سربېره په کندهار کې د شوراندام د سیمنټو...۷مخ

## د افغانستان او چین ترمنځ د روغتیایي همکاریو پر دوام ټینګار وشو

د عامې روغتیا وزارت سرپرست مولوي نور جلال جلالي، په کابل کې د چین له سفیر ((ژاو شینګ)) سره په کتنه کې پر دوه د عامې روغتیا وزارت په خپره شوې خبرپاڼه کې راغلي، چې په دې کتنه کې، مولوي نور جلال جلالي د افغانستان او چین ترمنځ



اړخیزو اړیکو او په روغتیایي برخه کې پر دوامداره همکاریو خبرې کړې دي. دوامداره اړیکې اړینې بللې او د دغه هېواد له سفیر څخه یې د کندهار میرویس...۷مخ

## د ترکیې له یوه خیریه بنسټ سره د همکاریو پر دوام بحث وشو



د اوبو او انرژۍ سرپرست وزیر ملا عبداللطیف منصور د ترکیې د خینو علماوو (د ادیف خیریه بنسټ مسؤلینو) سره لیدنه کړې ده، په دې لیدنه کې ښاغلي منصور د دواړو هېوادونو ترمنځ د دیني مشترکاتو او د ښو اړیکو مخینې ته په اشارې سره، په افغانستان کې د دیني مدرسو او نورو عام المنفعه پروګرامونو د تقویې په برخه کې د یاد بنسټ د چوپړتیاوو قدرداني کړې ده. ښاغلي منصور زیاته کړې کړې؛ چې په افغانستان کې اوسنی نظام د عقیدې پر بناء او د یو شرعي نظام د رامنځته کولو په ستري موخې سره رامنځ ته شوی دی، په همدې تړاو له ټولو اسلامي هېوادونو څخه تمه کېږي ،چې د افغانستان په پرمختګ...۷مخ

## د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر د ملګرو ملتونو سازمان د سرمنشي له ځانګړې استازې سره وکتل

د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر ملا خیرالله خیرخواه، د افغانستان او د «یوناما» له مشرې روزا اوتونبایوا سره په کتنه کې، پر




لپاره د ملګرو ملتونو سازمان د سرمنشي له ځانګړې استازې کلتوري او سیاسي موضوعاتو خبرې وکړې. په دې کتنه کې، د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر د افغانستان د کلتوري میراثونو په اړه معلومات ورکړل او ویې ویل چې افغانستان د زرګونو لرغونو آبداتو او لرغونو سیمو په درلودلو سره؛ د نړۍ له غني هېوادونو څخه شمېرل کېږي او دغه لرغوني آبدات او کلتوري آثار د افغانستان هویت دی. ملا خیرالله خیرخواه زیاته کړه: د افغانستان اسلامي امارت له نړۍ سره مثبت تعامل غواړي او د سیمې...۷مخ

## نیمروز کې د جمنازیوم جوړولو چارې پیل شوې

د نیمروز ولایت په خاشرود ولسوالۍ کې د درې میلیونه افغانیو په لګښت سره د فوټسال لپاره د یوه معیاري جمنازیوم جوړولو چارې پیل شوې. په دې تړاو جوړو شویو مراسمو کې د نیمروز ولایت مقام د دفتر رییس انجنیر حامد ابراهیم او یو شمېر نورو ځایي مسئولینو ګډون کړی و. مسئولینو په یادو مراسمو کې د ورزش په لا ملاتړ او دې ته د معیاري میدانونو...۷مخ

## پروان کې د جامو او لاسي صنایعو تولیدي شرکت پرانیستل شو

د پروان د جبل السراج ولسوالۍ په عشق آباد کلي کې د الماس د جامو او لاسي صنایعو تولیدي شرکت د متشبثو مېرمنو له لورې پرانیستل شو، چې په کې ۱۵۰ نجونو ته د کار زمینه هم برابره شوې ده. د دې شرکت مشرې فضیله سادات باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي ،چې په دې تولیدي شرکت کې کارکوونکي نه یوازې د خیاطۍ مسلکي زده کړې ترلاسه کوي، بلکې هره ورځ لسګونه جوړه جامې، سرمیزي،



او نور اړین توکي هم اوبدل کېږي. نوموړې زیاته کړې، چې دا کاري زمینه ۶ میاشتې وړاندې د هغو مېرمنو د شخصي وسایلو او ماشینونو په مرسته رامنځته شوې، چې غواړي یې په...۷مخ

## د رسنیزو سرغړونو د ارزونې کمېسیون غونډه وکړه

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو معینیت کې د رسنیزو سرغړونو د ارزونې کمېسیون نوبتي غونډه وکړه. په غونډه کې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو مرستیال مولوي حیات الله مهاجر فراهي، د مطبوعاتو او رسنیو د نظارت رییس مولوي صفي الله رائید او د کمېسیون نورو غړو ګډون کړی و. د غونډې په پیل کې د تېرو ناستو د فعالیتونو او لاسته راوړنو په اړه خبرې شوې او ورپسې د جهان راډیو تلویزیون او د غور ولایت سیمه ییزو




رسنیو ستونزې څېړل شوې دي. همدارنګه د رسنیو د بریښنا پر لګښت په اړه هم بحث شوی.د غونډې په پای کې ټاکل شوې کمېټې د ملي او اسلامي هویت د پیاوړتیا لپاره د القابو، کلمو او اصطلاحاتو په اړه خپل راپور د کمېسیون له غړو سره شریک کړي. د یادونې وړ ده، چې د کمېسیون...۷مخ

## تخار کې یو پُل جوړېږي

د تخار ځایي مسئولین وایي، چې د یاد ولایت د درقد په ولسوالۍ کې د نږدې ۲ میلیونه افغانیو په لګښت یو پُل جوړېږي. د تخار د والي ویاند محمد عارف عارف باختراطلاعاتي آژانس ته ویلي، دغه پُل ۱۸ متره اوږدوالی او ۴ متره سور لري، چې په جوړېدو سره به یې دې ولسوالۍ سره ونښلول شي. د نوموړي پر وینا دغه پُل خواجه بهاوالدین ولسوالۍ له درقد ولسوالۍ سره نښلوي چې لګښت یې د خلکو له...۷مخ

## د شهیدانو د ورثه وو او معلولینو د پالنې مرکز څخه ۱۵۳ تنه په ۷ حرفو کې فارغ شول

د شهیدانو او معلولینو چارو وزارت تخنیکي او مسلکي معینیت د شهیدانو د ورثه وو او معلولینو د پالنې له مرکز څخه ۱۵۳ یتیمان او معلولین له اوو بېلابېلو حرفو څخه فارغ شول چې په دې اړه راټولې شوې غونډې ته په وینا کې



د یاد مرکز رئیس ملا رحمت الله خالد وویل: د اسلامي امارت له بیا راتګ وروسته د هېواد زیانمن نسل ته ځانګړې پاملرنه شوې ده چې د دوی ستونزې یې حل کړي او دوی ته یې د نورو برخو تر څنګ د دوی زده کړو ته هم پاملرنه کړې ده چې نن یې پایله ښکاره ده او په ټول هېواد کې یتیمانو او معلولینو ته د حرفوي او مسلکي زده کړو د ترلاسه کولو زمینه برابره شوې ده. د یاد وزارت مالي او اداري رئیس مولوي کلیم الله افغان وویل: له اوو بېلابېلو...۷مخ

## پکتیکا کې سږ کال ۳۴۲ شنې خونې جوړې شوې

د پکتیکا د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسؤلین وایي، چې په روان کال کې د یاد ولایت په مرکز او ولسوالیو کې ۳۴۲ لویې او کوچنۍ شنې خونې جوړې او ګټې اخیستو ته سپارل شوې دي. د یادو مسؤلینو پر وینا د دغو شنو خونو د جوړولو چارې د یاد ریاست ترچتر لاندې د اسلامي امارت په مالي ملاتړ او د همکارو موسسو...۷مخ

## سرلیکنه

# بارانونه او واورې؛ د اقتصاد او پاک چاپېریال لپاره یې اهمیت

بارانونه او واورې د الله تعالی هغه ستر نعمتونه دي، چې نه یوازې د کرنې، د څارویو روزنې او د اوبو زېرمو ته حیاتي ارزښت لري، بلکې د چاپېریالي توازن په ساتنه کې هم اساسي رول لري. په ځانګړې توګه د افغانستان په څېر هېوادونو کې، چې اقتصاد یې تر ډېره په کرنه او مالدارۍ ولاړ دی، د بارانونو او واورو منظم اورښت د اقتصادي ودې او د اقلیم د بدلون له ناوړه اغېزو څخه د خوندي پاتې کېدو لپاره حیاتي اهمیت لري.

افغانستان، چې د اوبو له کمښت سره مخ دی، د بارانونو او واورو د اوبو مهارول او سمه ګټه اخیستل یې د اقتصادي ثبات لپاره مهم دي. د دې اوبو سمې زېرمه کول کولی شي، چې کرنیزوحاصلاتو کې لوړوالي راولي، که باراني اوبه د بندونو، سربندونو او زېرمتونونو له لارې مهار شي، نو کرنه به د وچکالۍ له ګواښ څخه وژغورل شي.

د مالدارۍ سکتور، چې د افغانستان د اقتصاد یو مهم رُکن دی، د بارانونو او واورو له برکته به د مناسبو څړځایونو له نشت سره مخ نشي.

د واورو او بارانونو د اوبو مهارول کولی شي د بندونو له لارې برښنا تولید کړي، چې هم د صنعت د ودې او هم د کورني مصرف لپاره خورا مهمه سرچینه ده. منظم بارانونه او واورې د خاورې حاصلخېزي زیاتوي، چې د شاړو ځمکو د زرغونېدلو برخه کې مهم رول لري.

که حکومت، خصوصي سکتور او خلک په ګډه کار وکړي، د اوبو د ضایع کېدو مخه ونیسي، بندونه جوړ کړي او د کرنیزو سیستمونو اصلاح ته لومړیتوب ورکړي، نو نه یوازې اقتصادي ثبات ته به ورسېږو، بلکې د اقلیمي بدلون له ناوړه اغېزو سره به هم مبارزه وکړو. بارانونه او واورې د ژوند نښې دي، خو که یې مهار نه کړو، همدا نعمت بیا ګڼ شمېر ناخوالې هم له ځان سره لري.

# د ټولنیزو شبکو اغېزې فرصتونه او ننګونې

**ځواک یوسفزی**

د افغانستان د ټولنیزو شبکو پراختیا او د خلکو د ارتباطاتو بدلیدنه په تېرو څو کلونو کې یو ستر پرمختګ بشیي، خو سربېره پردې له دغې پراختیا سره ځینې منفي اړخونه هم موجود دي چې د دې شبکو د غیر مسئولانه او ناسم استعمال سبب ګرځي. ټولنیزې شبکې لکه فیس بوک، ټویټر، انسټاګرام، ټیک ټاک او نور د یوې نړیوالې ټولنې په توګه د خلکو ترمنځ د خبرو کولو، نظریاتو شریکولو، له خپلو دوستانو او عزیزانو سره د اړیکو ټینګولو اسانتیا برابره کړې ده. په افغانستان کې، چې مخکې له دې ټکنالوجۍ او شبکو ته لاسرسی محدود و، اوس د ټولنیزو شبکو پراختیا د خلکو ترمنځ د معلوماتو تبادلې یو نوی سیستم رامنځته کړی،چې له لارې یې افغانان په نړیواله کچه د نورو هېوادونو له خلکو سره اړیکه نیسي، خپل نظریات او پیغامونه د نړۍ په کچه شریکوي، د خپلو فرهنګي، دیني او ټولنیزو تجربو تبادله کوي او له ګلوبلایزیشن سره په همغږۍ ژوند کوي. د دې پراختیا له لارې ځوانانو ته د خپلو نظرونو، اندېښنو او غوښتنو د شریکولو یو نوی ډګر پیدا شوی، چې دا د هېواد په کچه د ټولنیزې همغږۍ، پرمختګ او د علمي او فرهنګي تبادلې لامل ګرځي. افغانان د دې شبکو له لارې د خپلو مسئلو د حل لپاره نوي فرصتونه پیدا کوي، له خپلو هېوادوالو سره د ارتباطاتو ښه کولو لپاره سترې هڅې کوي او د ټولنیزو بدلونونو په لور د نړیوالو خبرو اترو په ساحه کې ګډون کوي.

فیس بوک، ټویټر، انسټاګرام، ټیک ټاک او نورو ټولنیزو شبکو خلکو ته اجازه ورکړې چې خپل افکار، تجربې او معلومات د نړۍ له نورو خلکو سره شریک کړي. دا ټیکنالوژي نه یوازې د خلکو ترمنځ د اړیکو پراختیا لپاره فرصتونه رامنځته کړي، بلکې د ټولنیزو اړیکو په جوړولو او د فردي ژوند په انعکاس کې هم لوی بدلونونه راوستي دي. د ټولنیزو شبکو له لارې خلک کولای شي خپل ټولنیز ژوند، پوهه او کلتور له خپلو ملګرو او نړیوالو سره شریک کړي. دا شبکې د اړیکو پراختیا، د ځان څرګندولو او د مختلفو نظریاتو او فرهنګونو سره د آشنا کېدو لپاره غوره وسیله ګرځېدلې ده.

خو له دې پرمختګ سره ځینې منفي اړخونه هم شته چې باید ورته پام وشي. زیاتره وخت خلک په دې شبکو کې یوازې د ځان ښودلو او د نورو د پام راجلبولو لپاره فعال وي، چې دا کار د اړیکو د ژورتیا پرځای سطحي اړیکې جوړوي. کله چې اړیکې یوازې د «لایک» او «کمنټ» پر اساس جوړې شي، نو د رښتیني او د زړه له تله اړیکو کمښت رامنځته کېږي. همدارنګه، د ټولنیزو شبکو زیات کارول د وخت ضایع کول، د شخصي حریم تداخل او په ځینو وختونو کې د خلکو ترمنځ د غلط فهمیو سبب هم ګرځي.

له همدې امله، دا اړینه ده چې خلک د ټولنیزو شبکو له منفي اړخونو څخه ځان وساتي او هڅه وکړي چې خپلې اړیکې د رښتینو ارزښتونو پر بنسټ جوړې کړي. باید خلک د انټرنیټ په کارولو کې اعتدال اختیار کړي او هڅه وکړي چې خپلو افکارو او اړیکو ته ژوروالی ورکړي. د ښو اړیکو پراختیا، د فرد درناوی او د ټولنیزې همغږۍ لپاره باید د ټولنیزو شبکو د مثبتو اړخونو څخه ګټه واخیستل شي. دا به نه یوازې د خلکو ترمنځ د اړیکو کیفیت ښه کړي، بلکې د ټولنیزې پراختیا او پرمختګ لامل به هم شي.

د ټولنیزو شبکو پراختیا د ځینو منفي اړخونو سبب هم شوې ده. د غلطو معلوماتو خپرول، د ځوانانو رواني ستونزې، د شخصي حریم ماتول او د آنلاین فریبونو خپرول ټول هغه منفي اغېزې دي چې د ټولنې په کچه زیان اړوي. په ځانګړې توګه ځوانان، چې د ټولنیزو شبکو په وسیله خپل ځان ته اعتیاد پیدا کوي، د دې شبکو له منفي اغېزو څخه زیات زیانویني. هغوی د ښو اړیکو د جوړولو او د خپلو ژوندیو اړیکو د پام وړ له لاسه ورکولو سره د ټولنیزو اړیکو کمزوري کېدو ته اړ شوي،چې د دې نتیجه په فردي ژوند کې د ستونزو او د ټولنې په کچه د بې اتفاقۍ او ګډوډۍ سبب ګرځي. سربېره پر دې، د غلطو معلوماتو خپرول او د آنلاین فریبونو خپرول د ټولنې د اعتماد او همغږۍ د کمزورۍ کېدو سبب کېږي. دا د دې لامل ګرځي چې خلک د ټولنیز بدلون په لور یو بل ته په صحیح توګه ژمن نه وي او د ګډو اهدافو لپاره خپل ځواکونه په ګډه کار نه کوي. د دې منفي اغېزو د کمولو او د ټولنیزو شبکو د مثبتې استفادې لپاره باید افغانان په ځانګړې توګه ځوانان د دې شبکو د استعمال په اړه جدي فکر وکړي. هغوی باید د خپلو مسئولیتونو، دیني اصولو او ټولنیزو ارزښتونو ته درناوی وکړي. د دې شبکو په وسیله باید نه یوازې د ځان لپاره، بلکې د ټولنې د پراختیا لپاره ګټور فعالیتونه ترسره شي د معلوماتو، ښوونې، فرهنګ او ټولنیز بدلون په اړه مثبت پیغامونه خپرول، د هغو مسایلو حل کول چې د ټولنې لپاره مهم دي او د فساد، بې عدالتۍ او د ټولنیزې کمزورتیا پر وړاندې د مقاومت په برخه کې هڅه کول باید د افغانانو د ټولنیزو شبکو اساسي هدف وي. افغانان باید په دې پوه شي چې ټولنیزې شبکې یوازې د شخصي اړیکو د جوړولو لپاره نه دي، بلکې د ټولنیز بدلون، پرمختګ او د هېواد د ملي هویت د ساتنې لپاره هم یوه مهمه وسیله ده. دا باید د مثبتو، سالمو او له اخلاقو ډکو اړیکو جوړولو په لور یوه قوي وسیله وي، ترڅو د ټولنې په کچه د باور، همغږۍ او یووالي د ټینګښت سبب شي.

د ښو اړیکو د ټینګولو او د ټولنیز یووالي د پراختیا لپاره اړینه ده چې افغانان د ټولنیزو شبکو په کارولو کې د خپلو اخلاقو، دیني اصولو او ټولنیزو ارزښتونو ته درناوی ولري. دوی باید هڅه وکړي چې له منفي اثراتو څخه ځانونه وساتي او په دې پوه شي چې د ښو اړیکو جوړول نه یوازې د فرد په شخصي ژوند کې د بریا لامل ګرځي، بلکې په ټولنه کې د سولې، پرمختګ او یووالي د ټینګښت لپاره هم یوه اړینه ...

۶مخ

# سعودي عربستان ته د سوريې د نوي حکومت د رئیس احمد الشرع دوه ورځنی سفر

**ریحان وردګ**

د روان ۱٤٤٦ هـ ق کال د شعبان میاشتې په ۳ مه د سوريې د نوي نظام رییس احمد الشرع او د یاد هیواد د بهرنیو چارو وزیر ښاغلی اسد الشیباني د سعودي عربستان په رسمي بلنه ریاض ته سفر تر سره کړ.

دا د سوريې د نوي حکومت لومړنی رسمي بهرنی سفر و،چې د سعودي عربستان په بلنه یې تر سره کړ.

که څه هم د سفر اصلي موخه له سعودي عربستان سره د سوريې د نوي حکومت ډیپلوماتیک او دوه اړخیزې اړیکې او په اقتصادي برخه کې همکاري ښودل شوې،خو د دې تر څنګ به دواړه هېوادونه په یو شمېرو نورو اهمو موضوعاتو هم مفصلې خبرې او کتنې وکړي، د بېلګې په توګه د جنورۍ په ۲۴مه د سعودي عربستان د بهرنیو چارو وزیر دمشق ته د سفر پر مهال له احمد الشرع سره د کتنې په ترخ کې ویلي وو، چې عربستان پر دمشق د بندیزونو د لرې کېدو په برخه کې له امریکا او اروپایي هېوادونو سره په خبرو بوخت دی.

دغه راز احمد الشرع هم د خپل حکومت په استازیتوب له سعودي عربستان سره د دوه اړخیزو اړیکو د پراخوالي او د سوريې په بیارغونه او اقتصاد کې د بشپړې همکارۍ غوښتنه تر سره کړې وه.

که څه هم تر دې دمه د سوريې د برخلیک په تړاو د نړیوالو او سیمه ییزو هېوادونو درځ پوره څرګند نه دی خو سعودي عربستان ته د احمد الشرع دا لومړنی سفر یو مهم ډیپلوماتیک پرمختګ ګڼل کېدای شي. دا سفر کولای شي د سوريې، سیمې او نړۍ په حالاتو کې مهم تأثیرات ولري او د سوريې د انتقالي حکومت مشروعیت پیاوړی کړي.

د احمد الشرع دا سفر به د سوريې نوی حکومت له ډېرو هغو پرتو خنډونو او مزاحمتونو څخه وباسي کوم چې سوریه همهاله ورسره لاس او ګرېوان ده.

که سعودي عربستان د سوريې د انتقالي حکومت ملاتړ ته دوام ورکړي، امکان لري چې د بیارغونې، بنسټیزو خدماتو او زېربناوو لپاره مالي مرستې چمتو کړي. دا به د سوريې اقتصاد ته یو مستقیم مثبت تأثیر ورکړي.

د سعودي ملاتړ ممکن نور خلیجي هېوادونه لکه متحده عربي امارات، قطر او کویټ هم وهڅوي چې د سوريې د بیارغونې لپاره پانګونه وکړي. که سعودي عربستان د سوريې د حکومت سیاسي پروسې ته ملاتړ ورکړي، دا به مخالفې ډلې وهڅوي چې د احتمالي جګړې د رامنځته کېدو پر ځای سیاسي تفاهم ته غاړه کېږدي.

په هر حال سعودي عربستان د منځني ختیځ یو مهم لوبغاړی دی. که ریاض د سوريې د انتقالي حکومت ملاتړ وکړي، دا به د نورو عربي هېوادونو لکه مصر، اردن او خلیجي هېوادونو لپاره یو پیغام وي چې دوی هم کولای شي د سوريې د انتقالي حکومت ملاتړ وکړي.

دغه شان د سعودي عربستان ملاتړ ښایي امریکا، اروپایي ټولنې او نورو غربي هېوادونو ته دا پیغام ورکړي چې د سوريې انتقالي حکومت ملاتړ ته ور وړاندې شي.

روسیه او ایران چې د سوريې د پخواني پرځېدلي رژیم اصلي ملاتړي دي، ښایي د سوريې د نوي حکومت د رییس احمد الشرع او د یاد هیواد د بهرنیو چارو د وزیر اسد الشیباني سفر سعودي عربستان ته د خپلو ګټو پر ضد وبولي او کولی شي د مسکو او ریاض ترمنځ اړیکې کړکېچنې کړي.

مهمه دا ده چې د سعودي رول په سوریه کې د نوي وضعیت په تړاو ډېر رغنده دی او دا نه یوازې د سعودي او سوريې لپاره بلکې د ټولې سیمې له ثبات سره مرسته کوي.

که څه هم د سفر بلنه د سعودي لخوا ورکړل شوې ده؛ خو بیا هم دا ترې جوتېږي چې احمد الشرع د دقیقو کورنیو سیاستونو ترڅنګ په بهرني سیاست کې هم محتاط او محاسبه شوي ګامونه پورته کوي.

د احمد الشرع سفر سعودي عربستان ته د سوريې لپاره یو مهم اقتصادي او امنیتي فرصت دی. که دا سفر له مثبتو پایلو سره مخ شي، دا به د سوريې اقتصاد ته د احیاء فرصت ورکړي او د امنیتي وضعیت د ثبات زمینه به برابره کړي.

# سیند او سندیزه حوزه دوه بېلا بېل مفاهیم دي

**حیات الله حلیم**

افغانستان د نړۍ په داسې جغرا فيايي موقيعت کې قرار لري چې د باران او واورو اوبه يې د لويو او څپانده سيندونو پر بڼه پنځو خواوو ته له ملکه وځي او له دې معلومېږي چې د افغانستان خاوره د اوبو د مسيرونو په ارتباط په پنځو لويو حوزو وېشل کېږي که څه هم د تلفظ په لحاظ سيند او سينديزه حوزه سره ورته مفاهيم دي خو په تشريحي بڼه له يو بل څخه زيات توپير لري، د موضوع د سم استنباط لپاره له درنو لوستونکو سره د سيند او سينديزې حوزې د تفکيک په اړه خپل معلومات شريکوو.

دا خو څرګنده ده چې هر لوی سيند د يوې ځانګړې سينديزې حوزې درلودونکی دی، نو کله چې د يوې سينديزې حوزې اوبه يوه مشخص مسيرته را ټولې شي او رويتي بڼه غوره کړي له سيند څخه عبارت ده.

سينديزه حوزه بيا له هغه پراخه جغرافيا څخه عبارت ده،چې د لرې او نېږدې نقطو څخه يې د باران او واورو اوبه يوه مشخص بستر ته ميلان ولري، د سينديزې حوزې په نامه يادېږي، هره سينديزه حوزه په سلګونو لوی او کوچني سيندونه او خوړونه لري خو لکه څنګه چې وويل شول اوبه يې په يوه مسير کې د لوی سيند په بڼه را ټولې شي له يوې سينديزې حوزې څخه عبارت ده.

که څه هم د کوچنيو تګ آبونو، په بڼه په هر ولايت کې کوچنۍ سينديزې حوزې شته خو په لويه کچه په افغانستان کې پنځه سيندونه اوپنځه سينديزې حوزې د يادولو وړ دي.

د کابل سيند: دغه سيند په حقيقت کې د اوونۍ له کوتل څخه نه، بلکې د دوو ښاخونو په بڼه چې يو يې د غزني ولايت د ناهور ولسوالۍ له سيا ريګ څخه او بل يې د دايميرداد ولسوالۍ اړوند د کجاب له لارې د مرکزي بهسود ود سنګ شاندې له سيمې را پيلېږي چې دا دواړه بيا د جلګې د شير توغي په کلي کې سره يوځای کېږي او د دايميرداد، چک او سيدآباد له ولسواليو په تېرېدو د تنګي درې د ( تګاب اونه برجه ) په سيمه کې د لوګر ولايت ته وځي او بيا وروسته د څرخي پله په برخه کې د جلرېز، نرخ او ميدان ښاريا په بل عبارت د اوونۍ کوتل اوبه ورسره يو ځای کېږي او د نغلو په ډنډ کې د کابل سيند بڼه نيسي، څو تر تورخم پورې د پنجشير، جبل سراج ، اليشنګ، الينګار،سرخرود او کونړسيندونه ورسره يوځای کېږي او د يوه لوی سيند په بڼه کوزې پښتونخوا ته وځي.



د کابل سينديزه حوزه : مهمه ده چې اوس بايد وپوهېږو دې سيند ته د کومو ولايتونو او کومو غرونو او سيمو اوبه د لويو اوکوچنيو سيندونو او خوړونو په بڼه را ټولېږي؟
د لويو سيندونو نومونه واخيستل شول دغه سيند ته د سياريګ له لارې د ناهور، او د جغتو له ولسوالۍ پرته چې اوبه يې د ترنک له لارې د هلمند حوزې ته ځي ، د دايميرداد، بند چک او سيدآباد اوبه په سرچينه کې حسابېږي، په دويم ګام کې د جلرېز، نرخ، ميدان ښار،لوګر، پروان ، پنجشير، کاپيسا ، ننګرهار، لغمان او کونړ ولايتونو اوبه ، په دې سربېره له شيبره رانيولې بيا ترختيځ کونړ پورې د هندوکش د لوړو غرونو سهيل پلو ټولې اوبه د غوربند او شتل د لويو او وړو سيندونو او خوړونو او همدارنګه د پغمان غره د ختيځ لوري ټولې اوبه د کابل سينديزې حوزې ته را ټولېږي ، د دې سينديزې حوزې مجموعي مساحت ۷۱۱۰۰ کيلومتره مربع دی او له ملک نه د اوبو وتلو ظرفيت يې ۲۲ميليارده متره مکعب ثابت شوی دی.

د هلمند سيند: دغه سيند د پغمان غره له لوېديځ مخ څخه پيلېږي او د بهسودو د سياسنګ په دره کې د سياسنګ سيند ورسره يوځای کېږي او د سهيل لوېديځ په لور د ملا يعقوب د کوتل په لوري حرکت کوي د دغه سيند په ساحلونو کې د سيستان په سيمه کې له ټولو ډېره کرنيزه ځمکه پرته ده خو اوبه د کال پنځه مياشتې سيلابي وي او نه مهار کېږي او وروسته بيا کمېږي
.

د دغه سيند د سينديزې حوزې مجموعي مساحت ۲۱۸۶۰۰ کيلو متره مربع کېږي او له ملک څخه د وتلو ظرفيت يې ۶/۵ ميليارد متره مکعب اوبو ته رسېږي دې سينديزې حوزې ته د باميانو د يو شمېر ولسواليو ، غزني ، ارغنداب ، زابل ، ارغستان او په مجموع کې د ترنک د حوزې اوبه ورټولېږي.

د آموسيند: دغه سيند د هېواد په شمال کې د زرکول له جهيل نه د پنج سيند په نوم را پيلېږي او کله چې د کندز له سيند سره د همدې ولايت د قلعه زال په ولسوالۍ کې يو ځای شي نو بيا د آمو سيند نوم خپلوي وروسته دجوزجان ولايت د خمياب په سيمه کې له افغانستان نه د ترکمنستان په لور وځي، دغه سيند د سواحلو د وړلو له پلوه له ټولو بدغونۍ سيند دی ځکه همدا سيند دی چې په تېرو کلونو کې به يې هر کال په زرګونو جريبه سواحل په مخه کول او د افغانستان په خاوره کې خپل ځانته د بهېدلو بستر جوړاوه، همدا وجه ده چې د افغانستان پولې د بدخشان تخار، کندز، مزارشريف او شبرغان په ولايتونو کې د ارې د غاښو په شان...

۶مخ

# اې وروره! خــور دې یــم

## لنډه کیسه

**همدرد (( شینواری))**

د سهار لمر خپلې وړانګې د ښار پر څلور خواوو خورې کړې، جګ شوم چاي مې ځان ته دم کړ. د چاي له څښلو وروسته له اطاقه د دندې په لور رهي شوم، زړه مې بد بد کېده ، ورځ راته د نورو ورځو په پرتله غمجنه او خواشينوونکې معلومېدله، د ماضي سرخوړلي ياد په خپله غېږه کې نيولي وم او بلها فکرونو مې حافظې ته د راتلو شيبې شارلې.

زه لکه يو بې کوره مسافر د خپل ځان په وير اخته وم او په زړه کې مې کرل رېبل، کاش ښه دنده او تنخوا مې درلودلې، کاش خپل موټر مې درلوداي، چې د کار ځاي ته پر خپل وخت رسېدلې، په همدې فکرونو کې مې د موټر د هارن غږ تر غوږو شو او وروګرځېدم.

ډرېور وويل: چېرته ځې؟

ما ورته په ښار کې د يو مشهور ځاي نوم واخيست، هغه وويل: راځه زه هماغه لور ته ځم، موټر ته پورته شوم ،ذهن مې هره شېبه د خپل غمځپلي ژوند کيسو نارامه کاوه او زه د خپل کاري منزل لور ته نږدې کېدلم.

ډرېور ټاکلي ځاي کې ودرېد او زه له موټره ښکته شوم، په نه زړه او ماتو قدمونو روان شوم.

د دندې ځاي ته مې څو دقيقې پياده مزل و، چې مخې ته مې يوه پېغله سوالګره ودرېده، په غريو نيولي غږ او رېږدېدلو لاسونو يې د يو څو پيسو غوښتنه وکړه، ما فکر وکړ چې دا ښار له سلو کيسو ډک دي او حرفوي سوالګر يې هره برخه کې شتون لري. دوي له مجبوريته نه، بلکې د عادت له مخې دغه کار ته مخه کړې ده، نو ورنه په بېړه بېړه تېر شوم، ، هغې په شا راوکتل سترګې يې له اوښکو ډکې شوې او په کمزوري اواز يې وويل:
« اې وروره!خور دې يم» سوالګره نه يم !

دې وخت کې ما خپل پورته کړي قدم پر ځمکه کېښود او ور ومې کتل، زړه مې څړيکه وکړه ، پر وجود مې خولې راماتې شوې

او زياته يې کړه: د کورنۍ سرپرستي د پلارجان له مرګه وروسته ماته را پاتې ده ، زده کړې مې د پوهنتون په درېيم سمستر کې نيمګړې پاتې شوې، زه په دې ارمان وم، چې يوه ورځ به د خپل بېچاره ولس زخمونو ته درمان شم، خو هر څه برعکس شول، اوس مجبوره يم، چې د خپلو وړو خويندو لپاره د نفقې پيدا کولو په موخه سوال وکړم.

دغې خبرې يې پر ما سر وګرځولو او بې اختياره مې له خولې دغه ټپه ووتله.

بې وروره خور يمه يتيمه
خداي دې يتيمه خور هېڅ نه پاتې کوينه

جيب ته مې لاس کړ او چې څومره وې ټولې مې ورکړې، دهغې تندي له خوښۍ وغوړېده، خو زما زړه او ذهن ترننه دغې جملې ناارامه کړي چې
« اې وروره! خور دې يم. »




# د اسلام له نظره له نورو هېوادو سره په ټکنالوژۍ کې سیالي

**ادریس سنګر**

ټکنالوژي د انسان د ژوند يوه مهمه برخه ګرځېدلې، چې د پرمختګ، اسانتياوو او اقتصادي ودې لامل ګرځي. په همدې توګه، سيالي د انساني فطرت يوه نه بېلېدونکې ځانګړنه ده، چې د افرادو او ټولنو د پرمختګ سبب کېږي. اسلام، چې يو جامع دين دی، د علم، پرمختګ او سيالۍ لپاره واضح اصول لري. په دې مقاله کې به وڅېړو چې اسلام څنګه ټکنالوژۍ ته ګوري، د ټکنالوژۍ په برخه کې سيالي ته څه ارزښت ورکوي او اسلامي اخلاق څنګه کولی شي د ټکنالوژۍ د مثبتې ودې لپاره لار هواره کړي.

۱- اسلام او ټکنالوژي
اسلام علم او پرمختګ ته ځانګړې پاملرنه کړې ده. قرآن کريم د علم حاصلولو ته هڅونه کړې او پيغمبر صلی الله عليه وسلم ويلي: «د علم زده کړه پر هر مسلمان نارينه او ښځينه فرض ده.» (ابن ماجه) دا حديث ښکاره کوي چې اسلام د علم، څېړنې او تخنيکي پرمختګ ملاتړ کوي. په قرآن کې د انسان د پوهې پراخېدو ته اشاره شوې: ژباړه: «او ووايه: ای زما ربه! زما علم زيات کړه.» (طه: ۱۱۴) دا آيت ثابتوي چې علمي پرمختګ د الله تعالی خوښ دی. اسلام مسلمانان هڅوي چې د نوښت، ساينس او ټکنالوژۍ له لارې نړۍ ته ګټه ورسوي.

۲- د سيالۍ مفهوم په اسلام کې
سيالي (مسابقه) د اسلام له نظره د هڅونې او پرمختګ وسيله ده، خو بايد د اخلاقو، عدالت او خير په چوکاټ کې وي. الله تعالی فرمايي: ژباړه: «نو د نيکيو په کولو کې يو له بله مسابقه وکړئ.» (البقرة: ۱۴۸) دا آيت ښکاره کوي چې سيالي بايد د نيکو اعمالو، نوښت او پرمختګ لپاره وکارول شي. سيالي، که په مثبت ډول وکارول شي، نو د فردي او ټولنيزې ودې سبب ګرځي.

۳- د ټکنالوژۍ په برخه کې سيالي
نن ورځ ټکنالوژي د قدرت او پرمختګ معيار ګرځېدلی. هغه ملتونه چې د ساينس او ټکنالوژۍ په برخه کې سيالي کوي، اقتصادي، نظامي او ټولنيز ځواک لري...

۶مخ

# په ټولنه کې د یو شخص لوړ ارزښت د هغه باور دی

محمدعظیم

له شکه پرته چې په نړۍ کې ژوند د انسان لپاره یو زرین چانس دی چې یوازې یو ځل ورکول کېږي او د دنیا په لذایزو کې په دې یو ځل ژوند کې د هغه اخروي برخلیک هم ټاکل کېږي، نو لازمه ده چې له هر څه لومړی د ژوند په مفهوم ځانونه وپوهو، چې موږ څوک یو، له کومه راغلي یو، په کومه ځو؟ او د څه لپاره په دې پېچلي مکانېزم کې پیدا شوي یو، چا پیدا کړي یو؟
په الهي خلقت کې څه چې په سترګو وینو، د یوه معین هدف لپاره پیدا شوي یو چې د ځینو اهداف ښکاره او څرګند وي انسان یې پر آسانۍ او ساده کې سره پېژندلی شي خو یو شمېر نور داسې موجودات هم شته چې له الله پاک پرته انسان یې په رمز او د موجودیت په هدف هېڅوک هم نه پوهېږي، لکه په غته کې د آسمان په پراخه غېږه کې بې شمېره ستوري، یا په ټیټه پایه کې په ظاهره په کروندو کې ځینې مضرې ګیاوې چې مفیدې ګیاوې او بوټې ترخپلې سینې لاندې کوي او ودې ته یې نه پرېږدي چې دا د خلقت هغه رازونه او رمزونه دي چې څوک پرې نه پوهېږي نو انسان ته لازمه ده چې د خپل ژوند په مثبت او منفي اړخونو ښېګڼو او بدګڼیو ځان وپوهوي، له هرڅه لومړی لکه د مخه چې وویل شول په دې حقیقت چې د څه لپاره د مځکې پرمخ پیدا شوي، چا پیدا کړي؟ باید ځان پوه کړي، په دویم ګام یې د لارښووني لپاره الهي اندرزونه په اسماني کتابونو کې موجود دي په تفاسیرو، احادیثو او فقه کې د انسان لپاره ټولې لارښووني بشپړې شوې،چې د دې ټولو په لوستلو او اورېدلو کولای شي د ژوند د سترې مسیر په مختلفو پړاوونو کې د سعادت او نېکبختۍ او د دنیا او آخرت نیکه مرغه لاره ومومي، په ژوند کې دوه شیان باید د خپل ژوند سر مشق وګرځول شي لومړی د هغه څه په لاس راوړل چې اړتیا ورته محسوسېږي، دویم څه ډول کولای شو،چې په لاس را وړل شوي متاع نه ګټه او چته کړو اویا یې د ځان پر ګټه په کار واچوو؟ په ژوند کې په هېڅ تکیې کولو ته باید سترګې ونه نیسو او لازمه ده د ژوند فورموله داسې عیاره کړو،چې د الله په مرسته پر خپل ځان او خپلو متو متکي واوسو، په ژوند کې له الله پرته هېڅ قدرت په دې قادر نه دی چې ستاسې په مخ کې خنډ واقع شي مګر په خپله تاسې او ستاسې افګار او له ژوند نه ستاسې استنباط د دې سبب کېږي چې اراده د ژوند په مسیر کې ټکنۍ کړي، انسان په خپلو عملکردونو کې فاعل مختارشوی او د خپل ځان د ژوند فورمول په خپله پوهه جوړوي، چې دلته د انسانانو ترمنځ د پوهې په درجه کې په ژوند کې لوړ توپیر موجود دی ځکه پوه کسان د ژوند لپاره داسې فورموله جوړوي چې د ژوند په مسیر کې له ستونزو سره مخ نه شي.
له بل پلوه هر انسان یو ټولنیز ارزښت لري د انسان له ټولو لوړ ارزښت په ټولنه کې د هغه باور او آبرو ده چې څنګه یې باید د ټولنې د افرادو ترمنځ وساتي، الله مکړه که په ټولنه کې خپل اعتبار او باور وبایلي، نو ژوند به یې حتمي تریخېږي ځکه ټولنیز ژوند هم هغه معادله ده چې په معقول فورمول پرمخ روانه ده که د فورمول په مفروض کې تېروتنه راغله مطلوب به له منځه تللی وي.
د فورمول پر مخ روان ژوند ډېرساده او اسان دی،خو د هغه چا لپاره چې د خپل ژوند لپاره معقول تدبیر ونه لري بیا ډېرسخت دی ځکه د ژوند لاره ګلستان نه ده ،چې بېخاره به ګړندی پرې روان وې، بلکې ژوند هغه اغزن مزل دی چې قوي پښې غواړي وسپنیزو څپلیو ته ضرورت لري ترڅو د خپلې پوهې په تدبیر له دې اغزیو تېرشې.
له بله اړخه ژوند له پرله پسې نا اندېولیو سره مبارزه ده چې فورمول یې غوره معلم او ښوونکی دی ځکه د ژوند فورمول د لار ورکې سمندر په توپاني څپوکې هغه قطب نما ده چې د ساحل لاره پرې موندل کېږي.
په دنیا کې ژوند ډېر لنډ دی خو په دې لنډ عمر کې ډېر لوړ هدف پروت دی،نو هېڅکله د ژوند دا چانس بابېزه باید ونه ګڼل شي او د ژوند لپاره داسې هڅې باید وشي لکه چې سړی هېڅ مرګ نه لري او د اخرت لپاره داسې کار وشي لکه همدا اوس چې سړی خپله روح پیدا کوونکي ته تسلیموي د دنیا په ژوند کې کار او حلاله روزي په لاس راوړل عبادت ښودل شوی،نو ژوند له کار پرته، له وخت وړاندې مړه کېدل دي ځکه ژوند له مشقت پرته نه بشپړېږي، ژوند یانې په اخروي او دنیوي مفاداتو پسې پرله پسې هڅې او پلټنې.
ژوند مقصد نه دی، بلکې د مقصد په لور حرکت دی، ژوند ارزښتناک دی له هرڅه سره چې په ژوند کې مخ کېږو هغه باید ثبت سجل شي،خو ژوند حقیقي مفهوم او ارزښت هغه وخت له لاسه ورکوي چې موږ په ژوند کې هدف ونه لرو، ځکه ژوند ورو، ورو هر چا ته ور زده کوي چې څه کاره یاست او څه باید وکړئ.
همدارنګه هر انسان په ژوند کې باید آزادي ولري، ځکه له آزادۍ پرته ژوند د بې روح جسم په مانا دی، له آزادۍ پرته فکر او ذکر دواړه سانسور دي.
له ژونده وېره مه لرئ ځکه د ژوند سختۍ تجربې را منځ ته کوي او تجربې پوهه؛همدارنګه د ژوند کوچنې مسایل هم سخت مه نیسئ ځکه د ژوند پېښې سختې له ژونده بېزارې را منځ ته کوي او بېزاري د ناهیلۍ او ناشکرۍ سبب جوړېږي او ځینې وختونه... **۶مخ**

# جهاد کې مې درسره شریکه کړه

ضیاء الحق حسان

د میدان وردګو ولایت، جغتو ولسوالۍ د سرخ قول کلي اوسېدونکي ډاکتر غلام حضرت راته وویل: شهید قاري عبدالرازق «مجاهد» راته زنګ وکړ ویل یې: سبا ته انتخابات دي، یو څه مرمۍ راته برابرې کړه، ورته ویل مې څومره؟ راغبرګه یې کړه،چې یو څه زیاتې وي ښې دي، ماخُستن مو کور ډوډۍ وخوړه، بي بي ته مې ویل: دروازه مه بندوه زه یو ځای ته ځم کېدای شي نا وخته راشم، ویل یې چېرته ځې حال به ضرور راته وایې، ورته ومې ویل: سبا د کرزي انتخابات دي، طالبانو یو څه مرمۍ غوښتې دي، ویل یې: جهاد کې مې درسره شریکه کړه، زه هم درسره ځم، ما ویل: ته مه راسره ځه هغه سخت ځای دی او نن بنګنې هم زیاتې ګرځي، ویل یې ضرور درسره ځم، دواړه روان شوو، میزایل مو ځمکه کې خښ کړي وو، هغه ځای ګاز هم لرلو، په پټکي مې وتړله او ښکته مې کړه، لږ وخت وروسته یې پرنجي شروع کړل، ویل یې ساه مې بندېږي، در هسکه مې کړه، کله چې جوړه شوه ویل یې: ورښکته مې کړه، میزایل او د هاوان مرمۍ یې راکولې پاس مې ایښودې، له کور مو دوې مرکبې هم بیولې مرمۍ مو پرې بار کړې، ورته ویل مې: زه مرمۍ وړم ته همدلته دمه شه، راغبرګه یې کړه زه هم درسره ځم، را روان شوو، زموږ د کور څنګ ته یوه ګلکنه وه هلته مو مرمۍ ښکته کړې، د ولسوالۍ له خوا قوه راوتلې وه او د بونګې کلي له لوري د ټانګونو رڼاوې همدې ځای ته سمې شوې، دې راته ویل: ته ځان پټ کړه، دغه اسلحه زه پټوم، زه د غره لور ته لاړم ډېر وخت هلته وم، چې یو لوی غږ پورته شو فکر مې وکړ چې امریکایان رارسېدلي، لږ وخت وروسته راغلم چې بي بي مې په مخه راغله ویل یې: تر اوسه امریکایان نه دي راغلي، ویل مې: دغه غږ د کوم شي و؟ په خندا کې یې راته ویل: نور سوچ مه کوه، له کور مې پلاستیکي پرش راوړو په مرمیو مې اچولی او بیا مې پاس ځمکه پرې راوغورځوله، غږ د هغې و، ته ولاړ شه د غره لور ته د مرمیو سره سوچ مه کړه. چاپې سهار دریم ټوک له منځه

# Culdocentasis

رنځورمل داکتر ثمینه هاشمی ترینر متخصص نسایی ولادی شفاخانه رابعه بلخی




Culdocentsis: عبارت از پروسیجر طبی است که توسط PNCTURE نمودن Vaginal vault در نزدیک خط متوسط دربین ligamentouterosacral انجام میشود که این عملیه با عبور دادن سوزن spinal از طریق مهبل در مسافه پریتوان جوف دو گلاس و خروج مایع انجام میشود و ارزش خاص را در تشخیص rupture ectopic دارد. مگر با پشرفت در ساحه طب وکشف ultrasonograph با resolution بلند و ارزیابی های مقداری BHCG ارزش آن تنقیص نموده است.

چون اجرای التراسوند طبعیت تهاجمی نداشته وبرعلاوه، معلومات اضافی را درپیوند با حوصله میدهد که درگام نخست صورت میگیرد.

اناتومی: جوف دوگلاس یا Rectouterin pouch درنتیجه منعکس شدن پریتوانیکه بین رکتم درخلف وجدارخلفی رحم درقدام تشکل گردیده که بعضاً امعای رقیقه ومقدار اندک مایع پریتوانی درجوف موجود است.

استطبابات: درعصرحاضر ودسترسی آسان به التراسوند نادراً اجرامیگردد که درحالات ذیل استطباب دارد:

۱-Ruptured ectopic pregnancy
۲-Blunt abdominal trauma
۳-Ruptured ovarian cyst
٤-برای بدست آوردن مایع وکلچر آن درتشخیص وتداوی PID
۵-برای تشخیص وتداوی حبن

مضاد استطبابات:

۱-Pelvic masses(ovarian tumor, tub ovarian abscess, pelvic kidney)
۲-Fixed retroverted uterus
۳-Coagulopathy
٤- Pre pubescence البته این محدودیت به اساس اناتومی درنظرگرفته شده است، چون اجرای این پروسجرازسبب مهبل قبل ازبلوغ مشکل است.
۵-Non cooperative patient

انستیزی: برای انستیزی از lidocaine ۱-۲٪ همرا با اپی نفرین استفاده میشود که درمخاط مهبل درفورنیکس خلفی یک سانتی میتر پاینتر ازنقته که دیوارخلفی مهبل با عنق وصل میگردد زرق میشود.

• Equipment
• (Speculum(Pederson,Graves
• Tenaculum or Allis clamp
• Ring forceps
• ۱۸ Spinal needle gauge
• Monsel solution for hemostasis
• ۲۰ml Syring
• Antiseptic
• Steril gloves
• Specimen container
• Light source

Positioning

قبل ازاجرا پروسیجر برای مدت کوتاه مریض را توصیه میکنم که قدم بزند یا بنیشیند که gravity کمک میکند تا مایع داخل جوف ذوگالاس گردد. وبعداًمریض را وضعیت dorsal lithotomy میدهیم قسمت بالای بیست را بلند می نمایم تا اینکه مایع داخل جوف شده به آسانی خارج کر.

Technique

Preparation : چون culdocentsis یک پروسیجر تهاجمی است قبل از اجرای پروسیجر باید معلومات کافی به مریض داده شود و موافقه کتبی یا شفای اخذ گردد و بعد از آن وضعیت DORSAL LITHOTOMY دادهشده سامان مورد ضرورت آماده میگردد.

Exposure: البته قبل ازاجرای پروسجر، معاینه bimanual اجراشود تاموقعیت رحم ارزیابی گردد، بر آمدگی جوف دوگلاس تجمع مایع داخل پریتوان را نشان میدهد.

مهبل را توسط محلول پایودین آماده نموده مریض را وضعیت میدهیم، قسمت بالای بیستررا بلند نموده بعداً bivalve speculum تطبیق ولبه خلفی عنق راباتنیکولوم محکم میگیریم درصورتیکه رحم retrovert باشد برای اینکه موقعیت مستقیم را اخذنماید لبه قدامی عنق را با تنیکولوم میگیریم، البته مریض باید آگاه باشد ازاینکه محکم گرفتن عنق باتنیکولوم دردناک است که برخی ازدوکتوران انستیزی موضعی تطبیق می کنند.

بعدازینکه speculum تطبق گردیدخوب باز میکنیم تا ساحه expose گردد medium graves speculum برای اکثر یت مریضان مناسب است، در صورت مهبل خورد یا اینکه sexual intercourse نداشته از Pederson speculum استفاده میگردد... **۶مخ**

# لوېدلي ستوري

## اته پنځوسم ستوری

امین وردک

شـهید حافـظ عزیـز احمـد (منیـب)
نـوم او تخلص : عزیـز احمد (منیب)
د پلار نوم: مولـوي عبدالحمید (افقر)
ځـای: افغانسـتان، وردگ، سـیدآباد، د تنگي دره، زموچ، زمبورک.
عمر : (۱٦) کاله
مدني حالت: مجرد
زده کـړې: هم د قـرآن کریم حافـظ ؤ او هـم یـې تـر نهم ټولگي ښوونځی لوستی ؤ.
د شهادت نېټه: (۱۳۹۲/۱۱/۲۴) هجـري لمریـز کال، پنځنـۍ (پنجشـنبه) سـهار مهـال نهـه بجې.
د شـهادت لامل: د ناټو یرغلگر ځواک ډرون هوایي برید.
د شـهادت ځـای: د زمبـورک مدرسې ته نږدې د غره لمنه.

شـوم چې ده راته وویل: مورې مـوږ خـو پخپله دا سـتونزمنه لاره (جهـاد) ځانو تـه انتخاب کړې ده، نو پـدې لاره کې خو دا شـیان خامخا شـته، صبر به کـوو! دلتـه حاجي تـوکل په خپله خپله کیسـه پیـل کړه او ویـې ویل : امیـن صاحب چې کلـه د ملاخېلـو کلي ته مخامخ لاندې پـه رود غاړه کې، پاټونو تـه نـږدې د غـربي یرغلگرو ځواکونـو ډرون الوتکـې فیر را بانـدې وکـړ او زه الله پاک وسـاتلم نو مـې د رود پر غاړه غاړه همداسـې کښـته حرکت وکـړ چې د ملاخېلو احمد شـا مې ولید، غږ مې پرې وکړ چې ودرېـږه! ده پرته لـه څه ویلو خپـل قدمونه لا جابک کړل او رانـه لاړ؛ ملامتوم یې نه! ځکه چې یقیناً غربي یرغلگرو خلک ډېر وېـرولي وو، ده البته فکر

یې د وتلو بند بسـت جوړ کړ، چـې بیـا زه الله پـاک د دوی د نقشـې لـه برکتـه وسـاتلم، خـو دوی دوه کسـه (فضـل عمـر آخنـدزاده او عبدالقیوم آخندزاده) بیا وروسـته شهیدان شـول، الله پاک یې دې شهادت قبول کړي.
د شـهید مور دلته بیا کیسې پیل کړه او ویې ویـل: کله چې نن د کافرانـو ډرون الوتکـو پـر حبیب احمـد وار وکړ نو بېگا ته مـې درېواړه زامـن له کوره ووتـل او مختلفـو ځایونـو ته تللي وو چـې پر کـور مو یې وحشـیانه چاپـه ووهلـه، خو داسـې چاپه چې د کوټو غولي مو یې لا واړول، له دغې پېښـې شـاوخوا دوه کاله وروسته مو یـې بیا پر کور وحشـیانه چاپه ووهله او پر بامونو را واوښتل چې بیا مې یې یـو زوی (بصیر



مزار: د خپل کلي په هدیره کې.
کیسـه کوونکـې: د شـهید غمجنه مورکۍ.
راسره مل کسان: حاجي حبیب احمد (تـوکل) او مولـوي نبي احمد حمیدي.
مکمله کیسـه: وروره که رښتیا درتـه ووایم نو هغه ورځې چې عزیـز احمـد جان مـې په کې شـهید شـو ډېـرې سرگردانې، لالهانـدې او دردوونکـې وې، ځکه چـې له یوې خـوا دوی لـه پلاره ماشـومان راتـه پاتې شـوي وو، له بلې خوا بې وسي او اقتصادي سـتونزې وې، هلته وطن اشـغال ؤ او کافرانو شپه ورځ رابانـدې یو کړي وو، خو لـه ټولو ځورونکـې نقطه بیا ماته دا شـوه، چې نـن د غربي ځنـاورو ډرون الوتکـې پـر حبیـب احمد وار وکړ، بېگا ته مو پر کور چاپه شوه او په سبا مې یې زوی (قاري عزیزاحمد) او لېـور زی (حاجـي صبغـت اللـه) یـې دواړه پر یـوه ځای او یو وخت کې راته شـهیدان کړل؛ وروره کیسـه خو داسې وه چـې کلـه حبیـب احمد له کـوره و وت، نو لږ وروسـته د کافرانـو ډرون طیـارې وار وکـړ، ما لـه ځـان سره وویل چـې خیر کړې خدایـه! بیا یې څـوک د ویر پر تغـر کېنول؟ چې کټل مې یو الي دوه سـاعته وروسـته حبیب احمـد الوتی رنـگ سرای ته راننـوت، چې کښـته پورته مې ورته وکتل نو پـه دودونو تک تور شـوی ؤ، وروره اولاد دی نـو! ځکه خو له ما لاره ورکه شوه او وارخطا

کړې چې که ورتـه ودرېږم نو هسـې نه کافران بـل وار پرې وکړي او دواړه پکې لولپه شو! خیـر خو یـو رقم مـې ځان د ورسـک تر کلي و رسولو، هلته ماشومان راټول شول او حیران حیـران یې راته کتل، ځکه چې زه دود وهلـی او ضمناً سـخت وارخطا هـم وم ، بیا د منډې په حالـت کې یوه بـاډې لرونکي سـوزکي موټر ته وختلم چې د علمخېلو خـوا ته روان ؤ، هغه چې مازې علمخېلو ته ورسـېد نو هلته یې ودرولو چې گواکې زه نور مخته نه ځم! نو زه هلته پوه شـوم چې سـخته ورځ یار یاور نـه لري! بیا مـې نو خپلو پښـو ته کش وکـړ چې کله د یوه دېوال سـیوري ته غلی غلی کېـږم او روان یم کله د بل؛ تر دې چې خپل کور ته ورسېدم.
تخمینـاً دوه کالـه وروسـته له دغې حادثې څخـه یوځل بیا د ظالم او یرغلگر دښـمن ډرون الوتکې د خانخېلو نه لږ بر (له دړې سره) وار راباندې وکړ چې هلتـه هم الله پـاک د توت تنه راته پرده کړه او زه یې وساتلم، خـو په هغـه ځل د یـاد کلي د حاجي زیرېـگل زوی (رحمت گل) په خپل سراچـه موټر کې د جـوی زرین تر بازاره راوړم، کـور یـې دې ودان وي! خـو چې مازې موټـر ته وخوت نو فکـر کـوم ده دویم ځـلي فیر حتمي وبللو ځکه یې شـهادتین ولوسـتل او بیا یې حرکت وکړ چې هلته (پهٔ بـازار کې) فضل عمـر آخنـدزاده او ځینې نور ملگري هم را ورسـېدل او ماته

احمـد) په سرای کـې د سر تر وېښـتانو کلـک ونیـو او لـه سـختو وهلو وروسته یې داسې کښته کش کړ، ما ورپسې منډه کړه او ورتـه ومې ویل چې ای خـدای ناترسـو! دا خـو کشر دی چېـرې یې کـش کوئ (دی هغه مهال داسـې نَوَکی غوندې ځوان ؤ) بیا نـو پر ځان نه یمه پوهېدلـې چې لوېدلـې یمه او ټیکـری مې هم له سره پرېوتی، نـو په دغـه وخت کـې کوم افغاني عسـکر منډه را اخیستې او هغـه زمـا خپـل ټیکری یې راباندې هوار کړی دی، هغه نو کوم بل عسـکر غـږ پرې کړی چـې ته د تروریسـتانو خدمت تـه راغلی یې که یـې وژلو او نیولـو تـه؟ ده ورتـه ویلي چې آیا تاسـو د ناموس او غیرت په نوم هم کوم څـه پېژنئ که نه! مطلـب غالمغال یـې سره کړی چې دا کیسـه مـې بیـا لورانو راتـه وکـړه ځکه چـې پر ما خو بې هوښـې راغلې وه! بېرته ځم هغه لومـړۍ چاپې ته چې په پـرون یې پر حبیـب احمد د ملاخېلـو لـه پاټونو سره وار کړی ؤ! وروره د چاپې شپه خو تېره شوه خو سبا ته مې همدغه زوی (عزیز احمد) او لېور زی (حاجـي صبغت اللـه) د تېرې شـپې د الوتکو د ناسـتې ځای ته ورغلی چـې ډرون وار پرې کړی او دواړه یې شهیدان کړي وو، زه چـې د مدرسـې خوا ته ورغلمه نـو نبي احمد زوی مې راته وویل چـې مورې همدوی دواړه دي خو راښـودل یې نه؛ ځکه چې... **٦مخ**

# مطالعه انسان را متفکر وخلاق بار می آورد

احمد

یکـی از دلایلی که شـماری از کشور ها مسیر پیشرفت، توسعه، تعالی، ترقی وخود کفایی را طی کرده و امروز حرف نخسـت را در سیاسـت، اقتصاد، تکنالوژی ، قدرت نظامی وتسـلیحاتی و... مـی زننـد، موجودیـت مراکز متعـدد علمـی، پژوهشـی وکار هـای عملی آنـان در این عرصه ها اسـت که به یقین این ویژگی ها، سرچشـمه ازخلق آثارعلمی وتحقیقاتی،همچنـان مطالعـه وپشـت کار محققـان آنـان، گرفته اسـت. از اینرو گفته می توانیم، مطالعه اسـت که انسان رامتفکـر، دانشـمند ومفیـد به جامعه وکشور بارمی آورد.
بنآ به صراحت گفتـه می توانیم ، مطالعـه کـردن بـه عنـوان ابزاروسـیله یـی برای کسـب اگاهـی ودانـش کـه معلومات آفاقـی انسـان را افزایـش مـی دهـد وانسـان را بـه مـدارج عالـی مـی رسـاند در زندگـی مـا نهایتآ بـا اهمیـت وبا ارزش اسـت که باید به آن نهایت ارج گذاشـت، اما درشرایـط کنونی و سـاده قرار گرفتن رسانه های اجتماعـی، مشـکل بـه نظرمی رسـد، کاردشـوار اسـت، مگر بایـد بدانیـم که مطالعـه کردن کاربسـیارضروری ومهـم در زندگی ما انسـان ها است ، زیرا مـا را در کسـب علـم ودانـش کمک مـی کنـد وایـن مطالعه نـه تنها ما را نسـبت به مسـایل مختلـف اگاه مـی سـازد، بلکه این کارسـبب افزایـش خلاقیت وقـدرت تفکرمـا نیز می شـود

ومـا را متفکروخـلاق بـار می آورد، مسـلمآ کسب دانش، چنین ویژگـی ها را به ما مـی دهد تا درتصمیم گیری ها بهترعمل کنیم وهمین موضوع، گامی درجهت بهبود جامعه وکشورنیز است.
بنابرین مطالعه کردن به ویژه به دانش آموزان کمک می کند تا با افزایش مهارت ها، شانس خود را

مسیرتوسـعه، شـکوفایی وخود کفایی را طی نخواهیم کرد.
روی ایـن اسـاس مطالعه کردن وکسـب دانش در شرایط کنونی جزء ضرورت هـای زندگی همه ما محسـوب می شـود، به گونه مثال؛ وقتی شـما به دنبال مطالعه دریک حوزه خاص هستید یعنی بـه آن علاقـه دارید یـا درعین

خواندن کتاب بـه باورمحققان، در تمام عمرسـبب می شـود که مغزدرسـنین پیری هـم توانایی خود را ازدست ندهد.
ازاینروخلـق آثاروپژوهـش درموارد مختلف، بـدون مطالعه غیرممکـن بـه نظـر می رسـد کـه باید این رونـد را ازصنوف ابتداییـه بـا برنامه هـای مدون



برای کسب مشـاغل بهترافزایش دهند، این کاربه آنان درسـاختن آینده ی روشـن وبهترهم کمک می نماید. هرچنـد ظهورفناوری ها وپیشرفت کشـور هـا، نتیجه آمـوزش وکسـب دانـش آنـان اسـت که باید ما هـم با پیگری ونهادینه کردن فرهنگ مطالعه، خود را درقطارکشـورهای روبه انکشـاف، قـرار دهیـم، زیرا اگـراز پهلـوی ایـن ویژگی به سـاده گی بگذریم وبـه آن ارج نگذاریم، بدانیـم که هیچگاهی

علاقـه مند بـودن، عـدم دانش اطلاعـات کافـی درآن خصوص وضعف شما دراین زمینه، شما را به سـمت مطالعه کتاب سوق می دهـد، بدانیم کـه در آن صورت هردو در نهایت، شـما را نه تنها به آرامش می رسـاند واسـترس شـما را کم می کنـد، بل قدرت تفکرومعلومـات افاقی شـما را نیز بالا می برد.
مسـلمآ مطالعه اسـت که انسان را نه تنها در بازسـازی سـلول هـای مغزکمک می کنـد، بلکه

وسـنجیده شـده عملی ونهادینه نماییم که بدون شک این رسالت متوجه معلمان ومدرسان مکاتب ومـدارس، همچنـان والدیـن شاگردان ودانش آموزان است.
حالا که مکاتـب، مدارس ونهاد هـای تحصیلـی همـه رخصت اند، می شـود با اسـتفاده از این فرصت بـه مطالعـه روبیاوریم تا عـلاوه برآمادگی برای سـال جدیـد وصنوف بـالا، معلومات آفاقـی خـود را نیـز افزایـش دهیم.

# د شعر او شاعرۍ نړۍ

نوري

ننگرهـار د هېواد له پرمختللو ولایتونو څخه شـمېرل کېږي، چې په کلتوري ډگر کې یې هم د پام وړ مثبت گامونه اوچت کړي دي. پـه دغه ولایت کې له پخـوا زمانو راهیسـې ډېر لیکـوالان او شـاعران روزل شـوي دي. لـه سـتونزو او خنډونـو سره سره دغه ولایت پـه فرهنـگ او اقتصـادي ډگرونـو کـې د پرمختـگ لوري تـه روان دی. اسـلامي امـارت د شـاعرانو د هڅولو او تشـویقولو لپاره مشـاعرې او جشـنوارې جـوړوي، چې دا لړۍ د پخوا کلونو په پرتله اوس غښتلې شوې او د شعر او شاعرۍ سره د ځوانانو لېوالتیا ډېره شـوې ده.زیـن العابدین پردېس، د ننگرهار ولایت یو شاعر او لیکوال وو، د حاجي سـعدالدین خوږیانی زوی په ۱۳۰۷ لږېدیـز لمریز کال کې د ننگرهار ولایـت د چپرهار ولسـوالۍ د ماڼو د کمانگرو د کلي په یوه روحاني کورنۍ کې وزېږېد او په ۱۳۱۵ ل کال کې له خپلې کورنـۍ سره د کندز ولایـت چاردرې تـه راغی. هغه خپلـې لومړنۍ او منځنۍ زده کـړې د دغې ولسـوالۍ د جمیعت لېسه کې بشپړې کړې او ثانوي زده کړې یې د کرنې ښانگـه کې په بغـلان ولایت کـې، چې هغه مهـال د قطغن

مرکـز و، سر تـه ورسـولې. پردېـس ۳۰ کاله پـه نوموړې ښانگه کـې د هېـواد په بېلا بېلو سـیمو کې دنـدې ترسره کړې. نوموړي له شعر او ادب سره بې کچې مینـه درلوده او د خپـل ژوند بهیر کـې یې په سـلگونو ملي واقعي او ولسي شـعرونه وویل. لـه بده مرغه د دغه شـعرونو ډېـره برخه د وخـت د توپانونو په څپو کې لاهو شـوه، خو له نېکه مرغه د ده کورنـۍ پـه دې وتوانېده چې د اروابـاد ځینـې خواره واره شعرونه راټول او د چاپ پـه گاڼـه وپسـولل. د خدای بخښـلي پردېس ټوله شـاعري پر ولـسي واقیعتونو ولاړه ده. هر کله چې یـې کومې ولسي نادودې او د وخت د چارواکو ناروا کړنـې د خپلو خلکو پر وړانـدې لیدلې او یا اورېدلې دي، نو پر وړاندې یې درېدلی او له دغـو حالاتـو یې نور ولس د شـعر په ژبه خبر کړی دی، چې څو وارې د همداسې صفا وینا او انتقادي شـعرونو له املـه د مهـال چارواکو او زوروړو لـه خـوا بندي او گواښل شوی، خو هغه له خپل ملي هوډ نه په شا شوی.
زیـن العابدیـن پردېس د هغه مهال یو له لومړنیو شـاعرانو څخـه وو، چـې د خپـل ادبي بنـدار لـه نورو ملگـرو سره

یې پـه ډېرو شـمالي ولایتونو لکه کندز، بغلان، سـمنگان، بدخـشان او ځیـنو نـورو سیمو کې د یو ادبي بهیر بنسټ کېښـود. د ادبپوهانو په وینا» همـدا او د هغه نـور ملگري لکـه مرحوم سـید عبدالقیوم عسـکر، اروابـاد کشـمیر خروټی، اروابناد حاجي وزیر احمد حسـین خیل، اروابـاد زمری حسـن، اروابناد محمد اسماعیل ملزم، اروابناد ډاکټر طـلا محمد خـادم، اروابـاد نظر محمد کامیاب، اروابـاد اسـدالله جمیـلي اروابـاد عصمت الله شرقي، اروابـاد محمد صدیق پسرلی او ځینـې نـور په دغو سیمو کې د پښتو او دری ادب د معاصرې دورې سـرلاري بللی شـو.»همدوی ول، چـې د وخـت پـر هرې تودې موضوع او تازه پېښـو یې غونډې او مشاعرې جوړې کـړې او د ولس غوښـتنې یې پـه کې انځـور کـړې. همدا کسـان ول چې په شـمال کې یې د هغه وخـت ځینې چاپي خپرونې لکه سپین زر جریده، د سپین زر بولتن، اتحاد جریده او د بدخشـان تـر نامه لاندې خپرونې پخپلـو علمي او ادبي لیکنو او شـعرونو ښـکلې او غښـتلې کړې. هـمدا راز یې د هېواد د نورو سیمو شاعران او ادیبـان خپلو مشـاعرو ته

راوبلـل او دوی هـم د نارنج گل تر دودیزې مشـاعرې ور ورسېدل، چې پدې توگه یې د هېواد له نورو ادیبانو سره هم ادبي او علمـي اړیکـې ټینگې شـوې.د شـهید زین العابدین پردېس د گډ ژوند ثمره ۸ زامن او ۵ لوڼې دي، چې څلور زامن یې د خپلواکـۍ او انقلاب په څپو کـې د دیـن او هېواد په لاره کې شـهیدان شـوي دي. زیـن العابدیـن پردېس د څو تورمخو، د فرهنـگ او ادب د دښـمنانو لـه خـوا د ۱۳۵۹ لمریز کال د سـلواغې په ۸ مه له خپل کوره وایسـتل شـو او بیا شـهید کړای شو. د پردیس چاپ شوي اثار: ولسي هېنداه (شـعري ټولگـه)، د ۱۳۸۹ ل کال چاپ او همدارنگه ولسي هېنداره (شـعري ټولگه، دویم ټوک) یـې د ۱۳۹۰ ل کال کې چاپ شو.
د معلومـاتي تکنالـوژۍ او انټرنت پـه منځتـه راتلو سره داسـې اندېښـنې وې، چـې گواکې شاعران او لیکوالان به کمزوري شي، خـو دا انگېرنه کمـزورې شـوه. اوس مـوږ گورو چې ډېر شمېر ځوانان د شعر او شاعرۍ ډگرته راوتلي، چـې د پخوانیو فیلسـوفانو، ادبپوهانو او شـاعرانو پر پله پل کېږدي.

# افغان اعلانات

## موضوع: د تړون د ورکړې پریکړې خبرتیا

ټولو داوطلبانو ته خبر ورکول کیږي، چې د ټرانسپورټ او هوایي چلند وزارت په پام کې لري، د ( وزارت د اړتیا وړ پرزه جاتو د تدارک) پروژه چې د MOTA/1403/G-265 Rebidنمبرتشخیصیه درلودونکې ده، تړون یې د ( مسعود نور لمتید شرکت) سره په مبلغ (4959505.6)افغانیو حد اقل او په مبلغ (18467753.45) افغانیو حد اکثر ورکړي. ټول حقیقي او حکمي اشخاص چې په دې برخه کې نیوکې ولري، کولای شي خپله نیوکه، دې خبرتیا د خپریدو له نیټې څخه تر اووه تقویمي ورځو پورې په لیکلي بڼه د دلایلو سره یو ځای د ټرانسپورټ او هوایي چلند وزارت د تدارکاتو ریاست تدارکاتو آمریت ته وړاندې کړي . دا خبرتیا د تړون د عقد په مانا نه ده د ذکر شوې مودې تر بشپړیدو پورې به تړون عقد نه شي.

## اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم تواب فیضی فرزند فیض محمد ولدیت محمد عزیز دارنده تذکره نمبر ( -۶۰۸۴۶ ۰۴۰۰ ۱۴۰۲- ) مسکونه اصلی ولایت ننگرهار مالک امتیاز دواخانه توحید عصری واقع ناحیه سوم ولایت ننگرهار عنوانی مقام محترم معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم عبدالرحیم فرزند طهراب خان ولدیت عبدالله خان دارنده تذکره شماره ( ۱۳۰۷۵۲۳) ( ج ۲ ص ۹۸ ث ۱۲۲۹ ) مسکونه اصلی ولایت پکتیا گردیده است .اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۳۷۰

## اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت -۳۵۸۹ ۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای حزب الله فرزند شفیق الله بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۳۸۳

## اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت عمران سعید لمتید یک عراده موتر پلیت -۲۷۸۷۷ ل کابل نوع تیوتا بنز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبدالمبین فرزند عبدالفتاح بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۳۸۹

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه وراثت خط شرعی نمبر ۳۵۵/ ۲۵۵ مورخ ۶ /۱۰/ ۱۳۹۴ مرتبه محکمه ابتدائیه چپرهار به اسم جلال احمد امر خیل فرزند حاجی بادام مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۷۳

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۱۷۵/۵۶۶ مورخ ۱۳۲۱/۱۱/۲ مرتبه محکمه ناحیه دهم واقع قلعه موسی به اسم عبدالله فرزند غلام حضرت ولدیت محمد اصغر مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۷۵

## اطلاعیه لیلام

به تعداد ۱۹۰ قلم اجناس اموال مستعمل ، داغمه و مازاد ضرورت خویش را به تاریخ ۱۴۰۳/۱۲/۱۵ به طور داوطلبی به فروش می رساند ، دوایر امارتی ، موسسات داخلی و خارجی ، شرکت ها ، افراد و اشخاص که خواهش خریداری آنرا داشته باشند به تاریخ ۱۴۰۳/۱۲/۱۵ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر به ساختمان مرکزی وزارت اقتصاد واقع چهار راهی ملک اصغر مراجعه نمایند ، تضمین ۱۵٪ قبل از شروع داوطلبی نقدا اخذ میگردد.۹۳۸۶

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه شناخت کارت کشور پاکستان به اسم حکمت الله فرزند میا گل مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۷۶

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسی نکاح خط شرعی نمبر۶۷۳۳/۲۴۷۵ مورخ ۱/ ۱۲/ ۱۳۹۹ به اسم عتیق الله فرزند نعمت الله و محترمه حنیفه بنت عید محمد از اعتبار ساقط است.۹۳۸۰

---

## د ټولنیزو شبکو...

برخه ده. د ښو اړیکو په جوړولو سره نه یوازې د فرد په شخصیت کې بدلون راځي، بلکې د ټولنې په کچه د اعتماد، عدالت او همکارۍ فضا پراختیا مومي. د ټولنیزو شبکو په وسیله باید د ټولنې د ټولنیز جوړښت په ښه کولو، د فقر او بې عدالتۍ پر وړاندې د مقاومت په لاره کې او د افغانانو د هویت او ملي ارزښتونو د ساتنې په برخه کې هڅې وکړو. د ښو روابطو، د جدي هدفونو او له کلتوري ارزښتونو سره د ټولنیزو شبکو استعمال د ټولنې د ثبات، سولې او پرمختګ لپاره یوه ستره وسیله ګرځي.

افغانان باید پوه شي چې د ټولنیزو شبکو له منفي اړخونو سره باید مقابله وکړي. دا نه یوازې د فرد په خپلواکۍ او رواني حالت کې بدلون راوړي، بلکې د ټولنې په کچه هم د نفاق، بې اتفاقۍ او ګډوډۍ سبب ګرځي. که چېرې افغانان خپلې اړیکې مثبتې او ګټورې وساتي، دا به یوازې د فرد په ژوند کې نه بلکې په ټولنیز بنسټ کې هم د یووالي، پرمختګ او همغږۍ سبب شي. د ښو اړیکو جوړول به په ټولنیز اړخ کې د سولې، پرمختګ او د خپلو ملي ارزښتونو ساتنه وکړي، چې په نتیجه کې به د ټولنې جوړښت قوي شي.

په پای کې د افغانستان د ټولنیزو شبکو پراختیا په هېواد کې د خلکو ترمنځ د اړیکو په جوړولو کې مثبت بدلونونه رامنځته کړي، خو سره له دې ځینې منفي اړخونه هم شته چې د دې شبکو غیر مسؤلانه کارونه د فردي او ټولنیز ژوند ستونزې زیاتوي. د غلطو معلوماتو خپرول، د شخصي حریم تداخل او د رواني ستونزو رامنځته کول هغه منفي اغېزې دي چې د ټولنې په کچه د ګډوډۍ، بې اتفاقۍ او نفاق سبب کېږي. دا منفي اړخونه د دې لامل کېږي چې خلک د خپل ژوند، اړیکو او اهدافو په اړه غلط برداشتونه وکړي، چې په پایله کې به ټولنیز جوړښت کمزوری شي.

له همدې امله، اړینه ده چې افغانان د ټولنیزو شبکو د استعمال په اړه دقت وکړي او د دې شبکو له منفي اړخونو څخه ځانونه وساتي. د خپلو اړیکو د ښه کولو لپاره باید له مثبتو ارزښتونو، دیني اصولو او ټولنیزو ارزښتونو سره سم عمل وکړي. د ښو روابطو د جوړولو لپاره باید د ټولنیزو شبکو امکانات په سمه توګه وکارول شي، ترڅو نه یوازې د فردي پرمختګ لامل شي، بلکې د ټولنیزې همغږۍ، یووالي او پرمختګ لپاره هم کار وکړي. د فردي او ټولنیزو اړیکو له لارې، افغانان کولی شي د خپلو ملي ارزښتونو ساتنه وکړي او د هېواد د سولې، ثبات او پرمختګ لپاره همکاري وکړي. د ښو اړیکو پراختیا به نه یوازې د افغانانو فردي ژوند کې مثبت بدلونونه راولي، بلکې د ټولنې په کچه د اعتماد، عدالت، همغږۍ او یووالي فضا به هم رامنځته کړي.

## سیند او سندیزه...

تېرې بېرې وې څکه دغه سیند په هر ځای کې بې چې زور رسېدلی و داسې بې دریغه بیدیاوې یې اړولې چې آن د هېواد نقشې ته یې هم بدلون ورکړی ، دا خو لا پر ځای پرېږده، چې د تخار په ولایت کې یې د درقد ولسوالۍ د سیند پورې غاړه پورې ایستلې ده.

له نیکه مرغه چې اوس د اسلامي امارت په نوښت د دغه سیند د سواحلو لپاره لازم تدابیر نیول شوي همدارنګه د قوشتېپې لوی کانال هم ترې را ګرځول شوی دی.

د آموسیندیزه حوزه : دا حوزه د کندوز او کوکچې د سیندیزې حوزې په نوم هم یادېږي،۹۲۳۰۰کیلومتره مربع مساحت لري او له ملک نه د اوبو وتلو ظرفیت یې ۲۰ میلیارده متره مکعب تخمین شوی دی.

د مرغاب سیند: دغه سیند د سفید کوه (فیروزکوه ) او د تیربند ترکستان د شمال لوېدیځ له لوړو، ژورو څخه سرچینه اخلي او۸۰۰ کیلومتره اوږدوالی لري چې ۴۵۰ کیلومتره د افغانستان او ۳۵۰ کیلومتره د ترکمنستان په خاوره کې بهېږي یاد سیند د افغانستان او ترکمنستان ترمنځ تقریباً۴۵ کیلومتره ګډه پوله جوړوي او سر انجام یې د مروې په ریګستانونو کې جذبېږي.

د مرغاب سندیزه حوزه : دا حوزه د سمت شمال د سندیزې حوزې په نامه هم یادېږي او آبګیره ساحه یې ۱۱۵۴۰۰ کیلومتره مربع مساحت لري چې شرین تګاب ، سرپل، بلخ او خلم په کې شامل دي او له ملک نه د اوبو د وتلو ظرفیت یې ۳ میلیارده مترمکعب اوبه دي.

د هریرود سیند : دغه سیند د بابا غرونو له لوېدیځ څخه سرچینه اخلي په هرات د سلما بند د دغه سیند د پاسه جوړ شوی،له افغانستان څخه د وتلو پر مهال لومړی ایران وروسته بیا ترکمنستان ته ننوځي ،هریرود له اسلام قلعه څخه تر ذولفقار پورې د افغانستان او ایران ترمنځ طبیعي پوله جوړوي وروسته د قراقروم په دښته کې پای ته رسېږي .

د هریرود سیندیزه حوزه : د دې حوزې د اوبو اخیستلو سرچینې ۷۷۶۰۴ کیلو متره مربع ته رسېږي ، دغه سیند د افغانستان لوېدیځه او شمال لوېدیځه جغرافیا په بر کې نیسي .

## د اسلام له نظره...

اسلام مسلمانان هڅوي چې په هره مثبته سیالۍ کې ګډون وکړي، تر څو د امت عزت او پرمختګ وساتل شي.

۳- د علمي سیالۍ اړتیا

د تاریخ په اوږدو کې مسلمانان د ساینس، ریاضیاتو، ستورپوهنې او طبي علومو په برخه کې مخکښ وو. د البیروني، ابن سینا، او الخوارزمي په څېر علماوو د نړۍ د علمي پرمختګ بنسټ کېښود. دا موږ ته ښیي چې د ټکنالوژۍ په سیالۍ کې ګډون کول اسلامي ارزښت لري.

۴- د ټکنالوژۍ سیالي او اسلامي اخلاق

سیالي باید د اسلامي اخلاقو مطابق وي، نه د دوکې، غلا، دروغو او احتکار پر بنسټ. اسلام دا اصل ټاکلی چې هدف وسیله نه توجیه کوي.

په ټکنالوژۍ کې د سیالۍ لپاره اسلامي اخلاق:

۱- صداقت او شفافیت: سیالي باید رښتیني وي، نه دا چې د درغلی، هک کولو یا غیر قانوني لارو سره پرمختګ وشي.

۲- عدالت او انصاف: د علم او ټکنالوژۍ وده باید د ټولنې د ټولو افرادو لپاره ګټوره وي، نه یوازې د یوې محدودې ډلې لپاره.

۳- مسئولیت او حساب ورکونه : ټکنالوژي باید د بشریت د خیر لپاره وکارول شي، نه د ضرر رسولو لپاره.

۴- خلاقیت او نوښت: اسلام مسلمانان هڅوي چې نوي اختراعات وکړي، نه دا چې یوازې د نورو ټکنالوژي نقل کړي.

۵- د اسلامي هېوادونو د ټکنالوژۍ سیالۍ ته اړتیا

نن ورځ د اسلامي نړۍ ډېری هېوادونه د ټکنالوژۍ په برخه کې له پرمختللو هېوادونو شاته پاتې دي. که اسلامي هېوادونه غواړي چې خپل اقتصادي، علمي او نظامي ځواک لوړ کړي، نو باید د ساینس او ټکنالوژۍ په سیالۍ کې فعاله ونډه واخلي.

د پرمختګ لپاره اړین اقدامات:

تعلیمي اصلاحات: اسلامي هېوادونه باید د ساینس او ټکنالوژۍ زده کړې ته ځانګړې پاملرنه وکړي.

تحقیق او پراختیا: د څېړنو او نوښت لپاره باید ځانګړي مرکزونه رامنځ ته شي.

اقتصادي پانګونه: د ټکنالوژۍ ودې ته باید ځانګړې بودیجه تخصیص شي.

بین المللي همکاري: اسلامي هېوادونه باید له پرمختللیو هېوادونو سره علمي او تکنالوژیکي همکاري زیاتې کړي.

اسلام ټکنالوژۍ د پرمختګ وسیله بولي او مسلمانان هڅوي چې د علمي سیالۍ له لارې دنیا ته ګټه ورسوي. د ټکنالوژۍ سیالي باید د اخلاقي اصولو سره برابره وي، خو بشریت ته ګټه ورسوي، نه زیان. که اسلامي هېوادونه د ټکنالوژۍ سیالي جدي ونه نیسي، نو دوی به د نړیوال پرمختګ له کاروانه شاته پاتې شي.

نو اړینه ده چې د علم، تحقیق او نوښت له لارې د اسلامي امت عزت او ځواک بېرته ترلاسه شي.

## په ټولنه کې د...

ناشکري د ډېفریشن سبب کېږي او ځان وژنې رامنځ ته کوي چې په ګناهونو کې دا له ټولو لویه کبیره ګناه ده ، په دغه ترڅه حقیقت باید ځانونه وپوهوو،چې ژوند دری ورځې دی ، پرون راغلی، نن دلې سبا به ځونه ، نن او پرون هېڅکله بیا نه را ګرځي هغه عنقا شول عنقا هېڅکله د چا په دام کې نه نښلي ، نو هغه سبا چې له راتلو یې بې خبره یې د ښه او بد په انتظار یې هم مه لرئ، حاضر حال یا نن ورځ غنیمت وګڼئ.

پاک وجدان ولرئ په غرور ژوند وکړئ ، سنګین او ځان تېرېدونکي واوسئ ، هېواد پال جوړښئ ، اتل ژوند وکړئ ، ژوند لوی ښوونکي دی په مجهولاتو مو پوهوي، ورته ځېرشئ، عجله مه کوئ ، په هغه څه چې غواړې لاس بری شې په عجله نه،بلکې په صبر او ذغم هغه ته رسېدای شې، د ژوند څېرل غضب دی ، خو ګنډل یې د توبې په مرغلین تار د هوښیارانو کار دی د خپلو خبرو په وروستیو کې ژوند له هغه پلورنځي سره تشبه کوو،چې په هغه کې هرڅه موجود اېښودل شوي وي هر څه مو چې خوښېږي هغه واخله، خو پام چې له یاده یې ونه باسې چې حساب په مخکې شته او د هر هغه څه بیه چې له پلورنځي دې پورته کړي وې ضرور به ادا کوې.

## Culdocentasis...

با کمک tenaculum کشش ایجاد میشود که این عمل سبب کشش شدن مخا ط مهبل و در صورتیکه رحم متحرک با شد سبب مستقیم شدن موقعیت رحم میگردد.

استفاده از انستیزی lidocain with epinephrine در مخاط مهبل فورنکس خلفی یک سانتی متر پاینتر از نقطه که جدار خلفی مهبل با عنق وصل میگردد زرق میگردد ولی بعضاً استفاده از انستیزی را به چندین علت ضروری نمیدانند اول اینکه PUNCTURE نمودن ممکن سبب خونریزی مغشوش کننده شود، دوم اینکه بعضاً انستیزی دوباره ASPIRE میگردد که سبب خروج مایع خون آلود شده که موثریت عمل را کاهش میدهد.

Spinal needle ga ۱۸ رابا سرنج وصل نموده و به صورت موازی با bladeپایین speculum تطبیق میکنیم سرنج را ابتدا با ۲mlسالین قبل از PUNCTURE نمودن پر میکنم و به تعیقب PUNCTUREسوزن جریان آزاد مایع ممکن سبب خارج شدن انساج که سبب بندش سوزن گردیده و مطمئن بودن از اینکه سوزن در موقعیت مناسب است استفاده از سالین بهتر از هوا است.

Aspiration:

بعد از تطبیق سرنج با تولید فشار منفیplunger سرنج را به عقب کش میکنم در صورت خارج نشدن مایع سوزن خارج به طرف راست یا چپ خط متوسط دوباره تطبیق میگردد ولی از تطبیق سوزن زیادتر به طرف چپ جلوگیری گردد که سبب puncture شدن mesenter و اوعیه حو صلی مگردد جلو گیری گردد بعد ما یع aspire شده را برای چند دقیقه میگذاریم که علقه می نماید یا خیر.

Assessment :

Positive result

•نتیجه مثبت تست با خروج بیشتر از ۲ml خون علقه نشده را گویند، اندازه ما یع مربوط موقعیت سوزن و مقداری خونریزی می باشدوعلت علقه نشد ن خون فعالیت defibrination پریتوان است.

•در ۹۹فیصد واقعاتEctopicبا Pregnancy test positive نتیجه culdocentsisمثبت است،و سطح هیموتوکریت بیشتراز۱۲-۱۵فیصد است.

•کلدوسنتز مثبت در موجودیت Ectopic prgnancy همیشه نشان دهندهRupture نیست چون در ۴۵ تا ۶۰ فیصد با موجودیت خون در پریتوان Unruptured ectopic میباشد.

•culdocentsis مثبت در موجودیت pregnancy test positive حمل خارج رحمی را به اثبات نمی رساند چون در Rupture carpus letum با موجودیت حمل داخل رحمی نشان دهنده نتیجه مثبت کاذب است زیرا فیصدی مثبت کاذب ۲-۹٪ است.

•Positive culdocentsis در خانم non pregnant میتواند واقع شود مثلاً در retrograde menstruation.

Negative Result

•خروج مایع pus,cystic,straw colored نشان دهنده نتیجه منفی است.

•خروج بیشتر از۱۰ml مایع صاف نشان دهنده سیست تمزق یافته تخمدان،حبن یا کارسینوما را نشان میدهد.

•خروج مایع نصواری تا ریک یا چاکلیتی خونریزی سابق را نشان میدهد.

•مایع prulent نشان دهنده انتان،امراض التهابی حوصله ,appendistis,divertculitis,در اسباب غیر نسای

Non diagonistic result

•Dry tap ارزش تشخیصی ندارد. ممکن سوزن pool مایع را دریافت نکرده باشد و در ۱۵٪ واقعات culdocentsis غیر تشخیص است. بناً در صورت dry tap باید U/S Laparoscopy, یا نظر به کلینک تشخیص نماید.

•خروج کمتر از ۲ml خون علقه شده هم تشخیص نیست ممکن این خون در نتیجه puncture نمودن اوعیه از جدار مهبل با شد.

•هیمتو کریت کمتر از ۱۲-۱۵٪ نشان دهنده خونریزی مقدار کم است که در ۱۵٪ واقعات ectopic غیر تشخیصی است.

Complication

•Rupture tub ovarian abscess

•Puncture of pelvic kidney

•Puncture of bowl

•خونریزی از ساحه puncture به علت موجودیت اوعیه بزرگ حوصلی

•Puncture نمودن malignant ovarian cyst

•Needle injury در حمل داخل رحمی در رحم retroverted

## لوبدلي...

زوی مې بیخي ډېر ژوبل ؤ او فقط غوښې یې په کفن کې راټولې کړې وې، مطلب پیژندل کېدلو نه! ما ډېر کوښښ وکړ چې ویې وینم خو تر پایه چا اجازه رانه کړه (کله به چې شهیدان ډېر ټوټې ټوټې شوي وو چې یا به یې سرونه نه وو یا تنې او... نو بیا به نورو مجاهدینو ملګرو او ځینو خپلو خپلوانو یې کوښښ کولو چې مینده ته یې و نه ښیې. لیکوال( حاجي حبیب احمد (توکل) راته وویل چې زما د تره زوی حاجي صبغت الله یقیناً ښه سړی ؤ او چې کله شهید شو نو مې د خپل ورور په نسبت پر ده ځکه زړه ډېر درد وکړ چې نه یې پلار ژوندی ؤ او نه یې هم بل ورور لرلو چې د اولادونو کفالت یې کړی وای، اولادونه یې هم ټول ماشومان یتیمان شول او ده به ډېر احتیاط هم کولو خو بس شهادت یې په برخه ؤ! یوه ورځ یې په دروازه کې ماته وویل چې زه او عزیز احمد به کومه شپه ستا له امله شهیدان شو! ما ورته وویل چې ولې حاجي صاحب؟ ده ویل چې تاسو خو د شپې وځې او موږ کور وو، نو که چاپه شوه مني که خو موږ ژوندي پرېږدي؛ دا خو یې چې کومه ورځ دوی شهیدان کړل په پرون یې د ملاخېلو له پانونو سره پر ما هم وار وکړ خو زه رب العالمین ترې وساتلم ! بیا مازدیګر مهال چې قاري عزیز احمد هم راسره ؤ نو ما مې سیم کارت له تیلیفون څخه و ایست او هغه مې د کور مخې ته په مالځای کې یو چېرې خښ کړ او زه بیا شپې ته لاړم زموږ د کلي له حاجي محمد یعقوب دوی کره، چې بیا یې هلته چاپه راپسې ووهله او خدای شاهد دی چې زما او غربي اشغالګرو تر منځ به تر شل سانتیو زیاته فاصله نه وه، خو الله پاک بیا هم ترې خلاص کړم! سبا قاري عزیز احمد ورغلی او زما تلیفون یې ورسره اخیستی دی، بیا نو دواړه د الوتکې ځای ته ورغلي، اغلب ګمان زما دا دی چې پر دوی یې زما شک کړی ؤ؟ نو ما بیا دړې ورځې همدلته په تنګې دره کې ځان غلی کړ چې فقط زموږ د حاجي آغا (پلار مې) دوه درې کسه نږدې ملګري راخبر وو او بس.

دوی دواړه رښتیا هم زما په تړو کې لاړل! ځکه چې پر ما خو دوه ځلې ډرون وارونه وکړل مګر الله پاک دا دی تر اوسه ژوندی ساتلی یم، خو دوی رښتیا هم زما له امله شهیدان شول! توکه مې پرې وکړه چې حاجي توکل صاحب! که وخت یې راغی نو ستا د مرګ لامل به یو ډېر ناچیز شی جوړ شي خو اوس دا دی د ناټو غوندې ستر انساني قوت د دوو ډرون الوتکو زور هم دربانډې و نه رسېد، حال دا چې ته خو ماشاءالله غټ هم یې ځکه خو له لیرې ښکارې! ده وخندل چې هو والله امین صاحب! رښتیا هم رب العالمین عجیبه وساتلم او خدای خبر چې د مرګ لامل به مې څه شی شي؟!.

د شهید بل ورور مولوي نبي احمد (حمیدي) راته وویل چې یوه ورځ په ګلابخېلو کې امریکایانو د پاس نظامي مرکز له ټاورونه څخه چې له ګلاب خېل څخه نیولې آن تر دولت خېلو پورې یې د مرمرو پر ټول غره قرارګاه وه (چې سپینکی ورته وایي) پر سرک تېرېدونکي عام خلک ویشتل چې په هغوی کې د تیمور خېلو محمد هاشم په ګډون څو خوستي مسافر هم وو، خوستي ورونه لومړی ټپیان شوي وو بیا پسې شهیدان شول؛ دا خو یې چې کله ویشتلي نو دوی پر سرک پراته دي او چیغې وهي مګر څوک له ډاره ورنږدې کېدلی نه شي، ځکه چې هر څوک به ورنږدې شول اشغالګرو ویشتل، په همدغه وخت کې زموږ وروکی حافظ عزیز احمد له مکتب څخه راغلی او د کور خواته روان دی، ګوري چې هغه یو ټپي پر سرک ولاړو اوبو ته زور کوي او غواړي ویې څښي چې د ده پرې پام شوی نو یې سخت زړه پرې سوځېدلی دی، خو چې ور مخته شوی نو له پاسه امریکایي اشغالګرو ډزې پرې کړې ځکه خو بېرته د موټر خواته پټ شوی دی، بیا چې ورمخته شوی او غواړي راکش یې کړي، بیا ډزې پرې شوې، تر دې چې ماښام شوی او هلک د مرمیو له ډاره له موټر څخه نشي لیرې کېدلی چې بیا ورو ورو د ټپیانو سلګۍ آرامې شوې او ټول شهیدان شوي دي، نو دی هم تر موټر لاندې پټ شوی او ټوله شپه یې همله تېره کړې ده، سبا چې کله د کلي خلک ورغلي او د شهیدانو جسدونه پورته کوي نو دی هم د موټر له سینې څخه راوتلی دی.

**د شوراندام...**

کارخونه کې د جوړولو چارې پیل کړې دي، چې اوس مهال یې د جوړېدو چارې بشپړېدو ته نږدې شوي دي. څه موده وړاندې د ریاست الوزراء اقتصادي مرستیال ملا عبدالغني برادر اخوند د شوراندام د سیمنټو کارخونې له کاري بهیر څخه لیدنه وکړه او اړوندو مسئولینو ته یې په مسلکي او معیاري ډول د کارونو د بشپړولو په اړه اړینې سپارښتنې وکړې. د یادې کارخونې کارونه د افغان انجنیرانو له لوري پرمخ وړل کیږي، چې په نږدې راتلونکي کې به گټې اخیستنې ته وسپارل شي.

د شوراندام د سیمنټو کارخونه کې اوسمهال د تخنیکي ماشینرۍ د نصب چارې روانې دي، چې له بشپړ نصب وروسته به د سیمنټو تولید پیل کړي. یاده کارخونه دوه فازونه لري، چې په لومړي فاز کې به په قانوني ډول له ۱۲۰۰ څخه تر ۱۵۰۰ټنه سیمنټو د تولید وړتیا ولري او د دویم فاز په بشپړېدو سره به دغه کچه ۳۲۰۰ ټنو ته ورسیږي. په یاده کارخونه کې اوس مهال ۶۰۰ هېوادوالو ته په مستقیم ډول د کار زمینه برابره شوې، چې د سیمنټو د تولید په پیل سره به دا شمېره دوه زره کسانو ته ورسیږي. د یادونې وړ ده، چې اسلامي امارت د سیمنټو په برخه کې ځان بسیاینې ته د رسېدو په موخه د جبل السراج دویمې کارخونې، د جوزجان د یتیم تاق او د لوگر د سیمنټو کارخونو قراردادونه هم کورنیو او بهرنیو شرکتونو سره لاسلیک کړي، چې د اکتشاف په بشپړېدو سره به یې د جوړولو عملي چارې پیل شي.

**د افغانستان او چین...**

سیمه ییز روغتون ودانۍ د بیارغولو، د خدماتو پراختیا، سنتي طب او راډیولوژي په برخو کې د افغان روغتیایي کارکوونکو د ظرفیت لوړونې او ساري ناروغیو پېښو ته د رسېدنې په موخه د وسایلو، درملو او واکسین برابرېدو په برخو کې د لا زیاتو همکاریو غوښتنه کړې ده.

دغه راز، په کابل کې د چین سفیر د خپل هېواد د همکاریو د دوام ژمنه کړې او د میرویس سیمه ییز روغتون د بیارغونې، روغتیایي کارکوونکو د ظرفیت لوړونې، د سنتي طب او طبي وسایلو په برخو کې یې د همکارۍ ډاډ ورکړی دی.

***

**د ترکیې له ...**

او پراختیا کې خپلو همکاریو ته پراخوالی ورکړي. له بلې خوا د یاد بنسټ مسئولینو د خپلو همکاریو په پراخولو کې ژمنه کړې او د افغانستان اسلامي امارت څخه یې خپل ملاتړ څرگند کړی دی.

**نیمروز کې...**

او آسانتیاوو په برابرولو ټینگار وکړ. د یادونې وړ ده، چې دغه جمنازیوم د ۵۰ مترو په اوږدوالي او ۲۰ متره په پلنوالي په معیاري ډول د درې میلیونه افغانیو په لگښت د یوه ملي سوداگر له لوري جوړېږي، چې د جوړولو چارې به یې تر یوې نیمې میاشتې بشپړې شي.

**تخار کې یو پُل ...**

لوري ورکول کېږي. د یادونې وړده، چې د یاد پُل د جوړېدو چارې به په ۶ میاشتو کې بشپړې شي.

**د رسنیزو...**

غړو د څو بېلابېلو موضوعاتو په اړه خپل نظریات او وړاندیزونه هم وړاندې کړي دي.

**پروان کې...**

کورونو کې کار کاوه او اوس توانېدلي، د خپلو تولیداتو ظرفیت لوړ کړي او ان بهر ته یې صادر کړي . د پروان د صنعت او سوداگرۍ ریاست د صنعتي پارکونو او سوداگریزو چارو آمر عبیدالله رحماني د دې شرکت پرانیسته یو مهم اقتصادي گام وباله او ویې ویل ،چې د دا ډول تولیدي شرکتونو فعالیت د ښځو لپاره د کار مناسبه زمینه برابروي. هغه زیاته کړه، چې د صنعت او سوداگرۍ اداره د متشبثینو د ملاتړ لپاره ځانگړې پلانونه لري، ترڅو د دوی تولیدات بازار ته لار ومومي. د معلوماتو له مخې، په دې شرکت کې ۲۲۰ زره افغانۍ پانگونه شوې او چارې یې د ۵ مېرمنو له خوا پرمخ وړل کېږي.

**د شهیدانو د ورثه...**

حرفو څخه ۱۵۳ کسان چې په کې معلولین او د معلولینو د ورثو سر پرستان دي چې د موټر جوړولو، د کورنیو برښنایي وسایلو جوړولو، ایرکنډېشن او یخچال جوړولو، موبایل جوړولو، کمپیوټر جوړولو، موټر سایکل او جنراتور جوړولو او خیاطي برخو کې حرفوي زده کړې ترلاسه کړې. د نوموړې په وینا: دا چانس د ټولو فارغو شویو لپاره حیاتي دی چې ترې په ټولنه او هېواد کې گټه واخلي، نننۍ زده کوونکي په حرفو ترلاسه کولو کې ځان بسیاینې ته رسېدلي دي چې کولای شي د ځان او کورنۍ اقتصاد پیاوړی کړي. اوس مو هېواد داسې ځای ته رسېدلی دی چې د ژوند په چارو کې د خپل هېواد له تولیداتو کار اخلي، نو حرفوي او مسلکي کسان کولای شي چې هېواد مو لا ښه د صنعت د ودې په پرمختگ کې رغنده رول ولري تر څو د نورو تر څنگ په رښتیني ډول د هېواد خدمت وکړي.

د لاس خیریه نړیوالي مؤسسې رئیس قاري عبیدالله فیصل وویل: فارغو شویو ته له فراغت سره سم مسئولیت وسپارل شو چې د خدمت تر څنگ ځان ته هم له دې لارې په اخلاص رزق وگټي. تراوسه پورې مو په ټول هېواد کې ۶۵۰۰ یتیمان او معلولین له مختلفو حرفو فارغین ور کړي دي. نو له دوی څخه غواړم چې په خپل گاونډ کې د کوچنیانو د زده کړو په ترلاسه کولو کې همکار واوسئ او لاسنیوی یې وکړئ.

فارغ شوی ځوان قاري خالد وایي: له پنځو میاشتو راهیسې مې د کمپیوټر جوړولو په حرفې کې زده کړې وکړې او اوس کولای شم د خپل زده کړې مسلک اړوند ټول وسایل جوړ کړم او راته د ویاړ ځای دی چې خپلې سیمې ته د کمپیوټر د انجنیر په حیث ستنېږم.

**زیارمل هوتک**

**پکتیکا کې...**

له لوري د یاد ولایت په مرکز او ولسوالیو کې د ۴۱ میلیونه افغانیو په لگښت بشپړې او گټې اخیستو ته سپارل شوي دي. سرچینې زیاته کړې، چې د شنو خونو خاوندانو ته د سولرتختې، سمرسیبل، برښنایي مزي، د اوبو ذخیرې، د اوبولگولو مجهزسیستم، د ډول ډول سبو تخمونه او ډول ډول کیمیاوي سرې او نور اړین ملحقات هم وېشل شوي دي. د یادونې وړده، چې د یادو خونو په جوړېدو سره کروندگر کولای شي له لږ ځمکې څخه په کم وخت او کم کار سره ډېرعواید ترلاسه کړي.

**شپږو میاشتو...**

د ښاغلي عزیز الرحمن د معلوماتو له مخې، د دوی له ډلې یوازې یو زر او ۸۹۶ تنه روغ، چې ډېرته ټولنې ته ستانه کړای شوي او ۱۱۲۱ تنه رواني ناروغان په مرکزونو او ۴ زره او ۲۷۸ تنه نور په خپلو کورونو کې لا هم تر درملنې لاندې دي، چې له بشپړې روغتیا وروسته به په ټولنه کې ادغام شي. د روغتیا تر څنگ افغاني سره میاشت بېوزله او بې سرپرسته هېوادوالو ته د ژوند چارو د اسانولو او ځان بسیاینې په موخه د حرفوي زده کړو زمینه هم برابروي. د دغې ټولنې مسئولینو د شپږ و میاشتو کړنو او لاسته راوړنو د راپور ورکولو غونډه کې څرگنده کړه، چې په کابل، کندهار، هلمند، فراه، فاریاب، بدخشان او بلخ ولایتونو کې یې د قطر په مرسته ۱۱۷۲ بې سرپرستو کونډو او دغه راز ۱۵۰ ځوانانو ته په راتلونکي کې د ځان بساینې په موخه د خیاطۍ، گلدوزۍ او غالۍ اوبدلو په برخه کې زده کړې ورکړې او د حاصل کړې کسب اړوند وسایل وېشلي دي. همدا شان د ډنمارک د سره صلیب په مرسته یې د مرکز په گډون درې ولایتونو کې ۵۰۰ اړمنو او بې کسو کونډو ته د ژوند داړتیا پوره کولو پروژې پلې کړې دي. د راپور پر بنسټ دغې ټولنې په تېرو شپږو میاشتو کې د خپلو داخلي مشمولینو ۱۱۵ کورنیو ته بدل اعاشه ورکړې او د ۱۲۴۶ تنو بهرنیو مشمولینو کورنیو بانکي حسابونو ته یې ۱۹ میلیونه ۴۸۵ زره او ۵۰۲ افغانۍ نغدي مرستې لېږلي دي. د مسئولینو په وینا، د امیرالمؤمنین د ۱۴۴۴ کال د لومړۍ میاشتې د ځانگړي فرمان پر بنسټ یې په ټول هېواد کې د سوالگرو د ټولولو او د هغوی د کورنیو د تشخیص لړۍ پیل کړه، چې له کره ارزونې وروسته یې ۲ زره او ۹۷۱ کورنۍ اړمنې معرفي او په میاشتني ډول نغدي مرستې وررسېدلې دي. دوی ټینگار وکړ، چې د سوالگرو ثبت شویو کورنیو سره به په راتلونکي کې هم د مرستو یاده لړۍ دوام و مومي. د یادونې وړه ده، چې افغاني سره میاشت د هېواد په کچه د طبیعي او غیر طبیعي پېښو زیانمنو، یتیمانو، معلولینو، معیوبینو، بې سرپرستو او اړمنو کورنیو سره مرسته کوي.

**نذیر منیب**

**له غزې د مقاومت...**

رامنځته کول، چې له مخې یې، دایمي اوربند او له غزې څخه د بشپړ وتلو لامل شي.)) نوموړي همداراز له غزې د حماس ډلې او مقاومت د وتلو او بېوسلې کولو غوښتنه هم رد کړې ده. قاسم وویل: (( له غزې څخه د حماس د اېستلو لپاره د اشغالگرو شرط یوه مسخره رواني جگړه ده او له غزې څخه د مقاومت وتل یا بېوسلې کول د منلو وړ نه دي.)) قاسم همداراز د هغې پرېکړې په اړه هم خبرې وکړې چې د راتلونکې شنبه په ورځ د خوشې‌کېدونکو بندیانو شمېر به له دریو څخه شپږو ته لوړ کړي.

**د لوړو زده ...**

او ملي ارزښتونو په پام کې نیولو سره پرې بیا کتنه وشوه. همدارنگه په تحصیلي نهادونو کې د زېربنایي پروژو، د نویو پوهنځیو او څانگو د رامنځته کېدو، په تحصیلي نهادونو کې د ماسترۍ او دوکتورا برنامو ایجاد، د استادانو لپاره د ماسترۍ او دوکتورا دورې د فیس معافول، د مسافرو استادانو لپاره د اعاشې او اباطې برابرول، په تحصیلي نهادونو کې د کادري بشري قوې تشې ډکولو او نورو لاسته راوړنو ته اشاره کړې او ویلي یې دي، د اسلامي امارت له حاکمیت وروسته په هېواد کې، د دیني او عصري علومو ترمنځ واټن له منځه تللی او دا نظام دواړو سکتورونو ته ځانگړې پاملرنه کوي. وروسته د افغانستان لپاره د اسلامي همکاریو سازمان ځانگړي استازي طارق علي بخیط د لوړو زده کړو وزارت د معلوماتو او لاسته راوړنو په اړه چې د لوړو زده کړو وزیر له خوا شریک شول، خوښې ښودلې او ویلي یې دي، دا سازمان د ۵۷ اسلامي هېوادونو په استازیتوب فعالیت کوي. نوموړي د افغانستان اسلامي امارت او په ځانگړې توگه د لوړو زده کړو وزارت سره په اقتصادي، علمي او تحصیلي برخو کې د همکاریو ژمنه کړې او زیاته کړې یې ده، په افغانستان کې سرتاسري امنیت حاکم شوی او په ټولو برخو کې د پرمختگ لپاره زمینه برابره شوې ده.

**د هېواد د...**

غړیو پرېکړه کړې، که چېرې د یاد ښارگوټي په حقوقي، املاکي او استملاکي اسنادونو کې ستونزه نه پیدا کېږي؛ د عیدي زاده ښارگوټي څخه د امام بخاري (رح) په نوم تائید ده. د غونډې په پای کې، د یادو ولایتونو سرېبره؛ د کابل او بدخشان خلکو پر عرض پاڼو هم خبرې شوې دي.

**بلخ کې...**

په ظرفیت سره نوي نصب شوي ترانسفارمر گټې اخیستو ته سپارل شوی دی. د نوموړي په وینا، چې د افغانستان اسلامي امارت د داخلي منابعو څخه د برښنا د چمتو کولو په هڅه کې دی او په تېرو پنځو میاشتو کې د ۵۷۰ میلیونه افغانۍ د برښنا په برخه کې پانگونه کړې او د پلان له مخې به په راتلونکي کال کې د برښنا د تولید په برخه کې ۴۰ میلیارده افغانۍ پانگونه وکړي.

ورته مهال د یاد ولایت د برښنا عملیاتي آمر انجنیر حمیدالله حمیدي وویل، چې اوس په دغه ولسوالۍ کې د برښنا شرکت پېردونکو شمېر ۱۶ زره کورنیو ته رسېږي، چې د دې ترانسفارمر په نصب کېدو سره ۴ زره نورې کورنۍ د برښنا له نعمته برخمنې شوې دي.

**جاپان ۵۰۰ هزار...**

در بخش تقویت نظارت از بیماریهای ساری و بهبود دسترسی به خدمات بهداشتی به ویژه در بخشهای دوردست تمرکز دارد. این نهاد، تأکید کرده که تلاش دارد با ارائه خدمات صحي به شهروندان افغانستان باری را از دوش سکتور صحی این کشور بردارد. سکتور صحی افغانستان، از بخشهای همگانی است که بیشتر به کمکهای جهانی وابسته است. در بیش از سه سال گذشته مقامهای امارت اسلامی بارها از کشورها و نهادهای جهانی خواسته اند که با سکتور صحی افغانستان همکاری کنند.

**ریاض کې...**

په اړه بحث شوی. دغه راز ټرمپ ویلي، اوکراین باید ژر تر ژره ټاکنې ترسره کړي، ترڅو له روسیې سره د سولې موافقه وشي. ده دا څرگندونې وروسته له هغې کړې، چې اوکراین د ریاض په خبرو کې د استازیتوب د نشتوالي له امله نارضایتي ښودلې ده.

**هلمند کې...**

نښلول شامل دي. ویل شوي چې د یادې پروژې د تطبیق په بهیر کې لسگونه کسانو ته د کار زمینه برابره شوې وه او په بشپړېدو سره یې ۱۷۴ کورنیو د ښناک اوبو ته لاسرسي پیدا کړ. باختر

**د ټاپ پروژې...**

(ترکمنستان- افغانستان- پاکستان) لپاره له ځانگړي ارزښت څخه برخمنه ده.

د غونډې په دوام د یاد وزارت د دفترعمومي رئیس قاري محمد عبدالعزیز عزیز د دغې پروژې د تخنیکي کمېټې د غونډو د پرېکړو په تړاو توضیحات ورکړل، د پروژې د بېلابېلو اړخونو لکه مخنیې، اقتصادي او سیاسي گټې، د لېږد لارې او اړوندو نورو موضوعاتو د پلې کولو د څرنگوالي په هکله یې په مفصله توگه خبرې وکړې.

همدارنگه د غونډې په دوام د دې پروژې د رهبرۍ او تخنیکي کمېټو د دندو لایحه او د لارې د نقشې مسوده چې د ترکمنستان هېواد څخه رالېږل شوې وه د نهایي کولو په موخه تر څېړنې لاندې ونیول شوه.

د یادولو وړ ده، چې د ټاپ پروژه د برښنا د لېږد له لویو پروژو څخه د ترکمنستان، افغانستان او پاکستان هېوادونو ترمنځ ده.

د دغې پروژې په پلي کولو سره د برښنا لین د لېږد پر ترانزیټي گټې سربېره، افغانستان کولی شي ۳۰۰ میگاواټه برښنا هم له دې لین څخه واخلي.

**د بیني حصار -...**

ریاست د معلوماتو له مخې؛ دغه سړک چې (۱۶۵۵) متره اوږدوالي او (۴۰) متره سور لري، تر راتلونکي نږدې یوه کال پورې به جوړ او ورسره جوخت به له یوې خوا د کابل- لوگر سړک ترافیکي گڼه گوڼه کمښت وومومي او بله خوا به د ورځېرمه سیمو اقتصادي ودې ته زمینه برابره شي.

**د اطلاعاتو او...**

او نړۍ هېوادونه هم باید په بېلابېلو برخو کې له افغانانو سره خپلې اړیکې پراخې کړي.

د افغانستان لپاره د ملگرو ملتونو سازمان د سرمنشي ځانگړې استازې او د «یوناما» مشرې هم په خپلو خبرو کې؛ د هېوادونو ترمنځ د اړیکو په پیاوړي کولو او پراختیا کې د کلتور رول مهم وباله او ویې ویل چې د فرهنگ او فرهنگي میراثونو د ارزښت په اړه عامه پوهاوی، د افغانستان د فرهنگي میراثونو د ساتنې لپاره مهم رول لوبولی شي. اوتونبایوا ډاډ ورکړ، چې د افغانستان د فرهنگي میراثونو د ساتنې په برخه کې به له اړوندو ادارو سره همغږي او همکاري وکړي.

Hewad Daily

پنجشنبه د شعبان المعظم ۲۱مه ۱۴۴۶ ق کال د ۱۴۰۳ ل کال د کب ۲ یمه د 2025 م کال د فبروري 20مه

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شیرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: ۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

افغاني سره میاشت:

# شپږو میاشتو کې ۵۳۹۹ رواني ناروغانو سره روغتیايي مرستې شوي



د افغـاني سرې میاشـتې ټولنې مسـئولینو د روان کال پـه وروسـتیو شـپږو میاشتو کې د شـویو کارونـو او لاس ته راوړنـو راپور له رسـنیو سره شریـک کـړ. د دغـې ټولنې مرستیال حافظ عزیز الرحمن وویـل، چې پـه دغـې موده کې یـې د زونونو پـه کچه د رواني ناروغانـو د درملنـې په مرکزونو او خپلو کورونو کې ۵ زره او ۳۹۹ نارینه او ښځینه ناروغانـو تـه د رواني روغتیا اړونـد مرسـتې وړاندې کړې دي...۷مخ

## حماس: له غزې د مقاومت وتل د منلو وړ نه دي




حماس په غزه کـې د اسرائیلو لهخوا د جګړې د پای ته رسولو لپاره د ټولو برمته شویو کسانو د خوشې کېدو وړاندیز کړی دی.د حماس یـوه ویاند حازم قاسـم پرون لـه اسرائیلو سره د اوربند د دویـم پـړاو خـبرو د پیل په درشل کې دغه وړاندیز کړي.ده وویل: (( موږ د دویم پړاو لپاره چمتو یو، چـې په‌کې به بندیان پـه یـو وار تبادلـه شي، د یوې هوکړې...۷مخ

## د لوړو زده کړو سرپرست وزیر د اسلامي همکاریو سازمان له پلاوي سره وکتل




د لوړو زده کړو سرپرست وزیر شیخ نداء محمد ندیم د افغانستان لپاره د اسلامي همکاریو سازمان له ځانګړي اسـتازي طارق علي بخیط او مل پـلاوي سره لیدنه کړې.په پیل کې د لوړو زده کړو وزیر طارق علي بخیط ته د ښـه راغلاست ویلو ترڅنګ خوښي څرګنـده کـړې چـې نوموړی افغانستان ته راغلی، د افغانستان وضعیت له نیـږدې ګوري او د دې هېواد اصـلي انځور نړۍ ته وړاندې کوي.شـیخ نداء محمد ندیم تر فتحې وروسـته د هېواد د تحصیـلي نظام لاسـته راوړنو ته په اشارې ویلي، چې تحصیلي نصاب مخکې د افغانانو اړتیاوو ته ځـواب ویونکی نه و،چې د اسلامي ...۷مخ

## د هېواد د څلورلارو او واټونو د نومولو کمېسیون غونډه وکړه




د اطلاعاتـو او فرهنګ وزارت د هنر او فرهنګ د معین مولوي عتیـق الله عزیـزي په مشرۍ، پرون د هېواد د مقدسو ځایونو، واټونـو او څلورلارو د نومونې کمېسـیون نوبتي غونډه ترسره شوې ده.
په دې غونډه کې د سرپل ولایت مقام چې د شـپږو څلورلارو د نومونو د بدلون غوښـتنه کړې وه؛ د کمېسـیون غړیو د ولایت مقـام د غوښـتنې پـر اسـاس پرېکـړه کـړې ،چـې د الماس څلورلارې د فرهنګ په نوم، د امور زنان څلورلارې د استقلال په نوم، د افـردي څلورلارې د مطبوعاتو په نـوم او د نظرګاه څلـورلارې د وحـدت په نوم ونومـول شي.پـه غونـډه کې همدا رنګه، د کنـدز ولایت د عیدي زاده ښـارګوټي د مالک په غوښـتنه د یاد ښارګوټي نوم د امـام بخاري (رح) پـه اړه د کمېسیون...۷مخ

## د بیني حصار - ستانکزي څلورلارې ترمنځ د سړک جوړولو چارې روانې دي

ښـاریانو ته د ترانسـپورتي او ترافیکي آسـانتیاوو د رامنځته کولـو پـه موخـه، د کابـل- لوګر سـړک په اوږدو کې له بیني حصـار سـیمې څخه تر سـتانکزي څلورلارې پورې د سـړک جوړونې چارې روانې دي او دغـه پروژه تر اوسـه (۲۵) سـلنه پرمخ تللـې ده.د کابـل ښـاروالۍ د برنامو او پروژو د تنظیم...۷مخ

## بلخ کې ۴۰۰۰ کورنۍ له برښنا برخمنې شوې

په بلخ کې د نـږدې دوه میلیونه افغانیو په لګښـت ۴ میګا ولټ امپیر په ظرفیت یو ترانسـفرمر نصـب او ګټـې اخیسـتو تـه وسپارل شـو.د افغانستان د برښنا شرکت اجرائیـوي ریيس ډاکټر عبدالباري عمر د یـادې پروژې د پرانیستې په مراسمو کې ویلي، چې د دې ولایت په بلخ ولسوالۍ کې د یو میلیون ۸۰۰ زره افغانیو پـه لګښـت د ۶.۳۵ کیلو ولټ برښنا کوټ سب سټېشن کې د ۴ میګا ولټ امپیر...۷مخ

## جاپان ۵۰۰ هزار دالر به افغانستان کمک کرد



بخش افغانستان سازمان جهانی صحی، اعلام کـرده که جاپان ۵۰۰ هـزار دالر به افغانسـتان کمک کـرده اسـت.این نهاد، دیروز در گزارشی در وبسایت خـود، نوشـته که ایـن کمک در بخـش تقویـت خدمـات مراقبت‌های صحـی برای افراد آسـیب‌پذیر بـه ویـژه زنان و کـودکان در افغانسـتان هزینه می‌شود.در بخشـی از گزارش این نهاد آمده کـه با این کمک و برای پاسـخ‌گویی به نیازهای صحی شهروندان افغانستان یک پـروژه ۱۲ماهه را بـرای ارائه مراقبت‌هـای صحـی ضروری از مـارچ سـال روان میـلادی تـا فـبروری ۲۰۲۶ راه‌انـدازی می‌کند.بخش افغانستان سازمان جهانی صحـی، گفتـه که این پروژه...ص۷

## د ټاپ پروژې د مشرتابه کمېټې غونډه وکړه



د ټـاپ پـروژې د مشرتابـه کمېټې غونډه وکړه.دغه ناسـته د اوبـو او انـرژۍ د وزیر ملا عبداللطیف منصـور تر مشرۍ لاندې، د انرژۍ د مرسـتیال ملا عبدالهادي یعقوب، د صنعت او سـوداګرۍ وزارت د مرسـتیال مولـوي احمدالله زاهـد، یو شمېر نورو رئیسانو او د بهرنیو چارو، مالیې، اقتصاد او د امارتي شرکتونـو اداري د اسـتازو په شتون کې د یاد وزارت د غونډو په تالار کې ترسره شوه.
پـه پیل کـې د اوبـو او انرژۍ وزیر د ټـاپ (TAP) پروژې د ټرانزیټـي او اقتصادي ښـېګڼو یادونـه وکـړه او ټینـګار یې وکړ، چې دغـه پروژه د درېوو هېوادونو...۷مخ

## کونړ کې د یوه کانال د جوړولو چارې پیل شوې



د کونـړ ولایـت په غـازي آباد ولسـوالۍ کـې د ۹ میلیونـه افغانیو په لګښـت د ۵ کیلومتره پـه اوږدوالي د یـوه کانـال جوړولـو چـارې پیـل شـوې دي.سرچینـې ویـلي، چې د دغه ولایـت د غازي آباد ولسـوالۍ پـه نېشـګام کلي کـې د خوړو نړیوال سـازمان په مـالي ملاتړ د ۹ میلیونـه افغانیو په لګښـت د ۵ کیلومـتره پـه اوږدوالي د یـوه کانال جوړولـو چارې پیل شـوې دي.سرچینې زیاته کړې، چـې په دې پروژه کې د سـیمې لسګونه کسـانو ته د کار زمینه برابـره او پـر مټ بـه یې ۶۵۰ جریبـه کرنېزه ځمکـه خړوبه شي.

## ریاض کې د روسیې او امریکا د بهرنیو چارو د وزیرانو خبرې مثبتې وې



د روسـیې دولتي خبري آژانس د روسي چارواکو له قوله خبر ورکـړی، چې پـه ریاض کې د روسـیې او امریـکا خبرې مثبتې وې.د روسیې د ولسمشر سلاکار یوري اوشاکوف ویلي، چې دواړو لوریـو د اړیکو د پراختیـا، د اوکراین کړکیچ او د راتلونکـو لیدنو پر شرایطو بحـث کړی.نومـوړي زیاته کړې، چې د پوتـین او ټرمپ ترمنـځ پـه نـږدې راتلونکې کـې د لیدنې احتـمال کم دی، خـو دواړه هېوادونـه د دغه ملاقات لپـاره شرایط برابرول غواړي.د روسـیې د ولسمشر سلاکار یوري اوشاکوف ویلي، چې پوتین بـه پرېکړه وکړي، څوک د اوکراین د خبرو اترو لپاره د روسـیې پـه مذاکراتي ټیم کې ګډون وکړي.نوموړي زیاته کـړې، چې مسـکو او واشـنګټن د پوتین او ټرمپ د لیدنې لپاره د شرایطو برابرولو هڅه کوي، خو لا هم د دواړو هېوادونو دریځونه سره نه دي نږدې شوي.اوشاکوف ټینګار کړی، چې په ریاض کې د دې موضوع ...۷مخ

## هلمند کې د اوبو رسولو شبکه ګټې اخیستو ته وسپارل شوه




د هلمنـد پـه ګرمسـېر ولسـوالۍ کې د اوبو رسولو یوې شـبکې په ګټې اخیستو سره، نـږدې ۲۰۰ کورنیو ته د څښـاک اوبه برابرې شوې دي.د کلیـو بیارغونـې او پراختیـا وزارت د معلوماتو لـه مخـې؛ د هلمند ولایت د کلیـو بیارغونـې او پراختیا ریاسـت لـه لـوري، د دغه ولایت د ګرمسـېر ولسوالۍ پـه ملا اقـدام کلي کې د څه باندې ۴.۴ میلیونه افغانیو په لګښـت د اوبو رسولو یوې شـبکې د جوړولـو چـارې بشـپړې او ګټې اخیسـتو ته وسپارل شـوه.په یاده شبکه کـې د ۲۰ مـتره مکعـب په ورتیـا د پاکـو اوبـو یـوې ذخـیرې جـوړول، د ۳۴۹۳ مـترو پـه اوږدوالي د پایپ غځول، د اته سـولر تختو او ۹۲ شیردانونو...۷مخ